


# ډالۍ

د ابرار مؤسسې دوه میاشتنۍ خپرونه

لومړی کال، دویمه ګڼه، ۱۳۸۱ ل تله ــ لړم/ ۲۰۰۲ سپتمبر ــ اکتوبر



د شهیدانو او معیوبینو له وزیر
ښاغلي عبدالله وردګ
سره مرکه



د معیوبینو د بایسکل ځغاستې سیالي

د چین شین هوانګ ستر یادګار
او نور په زړه پورې مطالب



افغاني معیوبین له کابل نه په بایسکلونو لندن ته ځي

# ډالۍ

د ابرار موسسې دوه میاشتنۍ مجله

## په دې ګڼه کې




د امتیاز خاوند : د افغاني معیوبینو لپاره د بایسکل چلولو او بیارغونې تفریحي موسسه (ابرار).

د تاسیس نېټه : ۱۳۸۱ل. کال د زمري میاشت.

موسس : ډاکتر عبدالبصیر توریالی.

مسوول مدیر : حفیظ الله تراب.

مرستیال : عبدالناصر بریالی.

کتنپلاوی : عمراخان منیب او سید الیاس صداقت.


## پته


**په افغانستان کې:**

د عامې روغتیا روغتون - جلال اباد، ننګرهار.

ټیلیفون : ۲۰۲۴

په کابل کې: تایمني- سرسبزي چوك - دویم سرك شیریزدان جومات ترڅنګ.

پېښور : ابرار - جمرود روډ- یونیورسټي ټاون.

ټیلیفون ۰۹۲-۱۰۹۱۸۴۴۰۷۸

فاکس ۰۹۲-۰۹۱-۸۴۰۵۲۱


ډالۍ د لیکوالو د لیکنو ننګه نه کوي.

بسم الله الرحمن الرحيم


PROPERTY OF ACKU

# يادښت

وايي، (چې رښتيا راځي، دروغو به کلي وران کړي وي) همدغه وينا له تېرو څوکلونو راهيسې زمونږ دهېواد دخلکو په برخه کې کټ مټ رښتيا شوه- لس کلنو کورنيو جنګونو که له يوې خوا زمونږ دهېواد هرڅه لولپه کړل ،نوورسره يې زمونږ د اولس درونند کلتور هم دبهرنيانو په وړاندې سپك سپاند کړ. هغوی، چې زمونږ پخپلوکې سره غوښه چاړه کېدل وليدل، نو داسې يې وانګېرله ،چې ګواکې افغانان پرته لـه جنګ ،ورورو‌ژنې او بربادی بل هيڅ هم نه پېژني اوله تهذيب سره دښمني يې په خټه کې اخکل شوې ده ،خوله دې ناخبره دي ،چې افغانان تر بل هر چا پـه سوله مين اونوروته د متقابل درناوي کلك پلويان دي – دوی کلونه کلونه پخپلو کې ،هوسا ،آرام او دميني ژوند تېر کړې ، چې غوره بېلګه يې دپخواني پاچا محمد ظاهر شاه اومحمدداود خان دوخت حکومتونه وو ،چې د سولې، او قانون ته د درناوي ساری يې د نن وخت په متمدنه نړۍ کې لاتر اوسه هم نه تر سترګو کېږي.

رښتيا خبره خو دا ده چې تېر کورني جنګونه د نورو له خوا پر دوی تپل شوي وو! دغو جګړو چې کوم عوامل درلودل، په هغوی هر څوك پوهېدل، خو يوه خبره چې د ډېرو د منلو وړ ده، هغه دا چې يو څو جګړه مارو افغانان پـه داسې يوه ناوړه اقتصادي حالت کې راښکېل کړي وو، چې ځينو يې د يوې مړۍ ډوډۍ د تر لاسه کولو لپاره د خپلو سرونو په بدل کې د دغو جنابانو د رټلو هوسونو قرباني کېدل.

پايله يې دا شوه چې د تېر کال د سپتمبر د يوولسمې نېټې پېښې زمونږ د هېواد سياسي برخليك هم بدل کړ او نړيوالو د يو پرمختللي افغانستان د جوړېدا کلکې ژمنې وکړې. د دغه زيري په اورېدو د هربا احساسه افغان د اميد غوټۍ وغوړېدې او تر اوسه يې د تر سره کېدو او اغېزمنتوب لارې څارې. دغه مرستې که په رښتيا هم تر سره شي او پر ځای وکارول شي، نو لرې نه ده چې زمونږ په هېواد کې به سر تاسري سوله او نېکمرغي راشي، خو يوه خبره چې د دولتي او غير دولتي چارواکيو او موٌسسو د پاملرنې وړ ده، هغه دا چې دغه مرستې بايد په مناسبو ځايونو کې په پوره امانتدارۍ د خلکو د هوساينې او د هېواد د بنسټيز رغښت په لاره کې ولګول شي او دا ځکه چې د دغو مرستو په ذره ذره کې زمونږ د هېواد د بې شمېره شهيدانو، يتيمانو، کونډو رنډو او ټول ملت وينې، ساندې او سلګۍ ګډې دي.

# د میډیکو انټرنیشنل هیئت د ابرار

# مؤسسې فعالیتونه له نږدې وکتل

د روان کال د اګست د میاشتې په اوومه نېټه د میډیکو انټرنیشنل کوارډینېټور ښاغلي سباشین کزاك د ابرار موسسې فعالیتونه د جلال اباد په ښار کې له نږدې نه ولیدل. د ده سره چې د جرمني د ماینونو د بندېز د ادارې کوارډینېټور ښاغلی ماکس هاك هم ملګری و، په هغه غونډه کې چې د معیوبینو د فراغت په ویاړ جوړه شوې وه، ګډون وکړ. معیوبینو ته د خپلې وینا په ترڅ کې هغه وویل:

ښاغلی (سباشین) د ابرار موسسې دفارغو معیوبینو په غونډه کې

زه د جرمني مېډیکل انټرنېشنل لپاره کار کوم او د دې ادارې کوارډینېټور یم. زموږ له نامه نه دا څرګندېږي، چې موږ روغتیایي اداره یو، خو دا په ټوله مانا سهي نه ده، موږ په ټولنیزو او رواني برخو کې کار کوو. موږ غواړو چې د ماینونو چاودل له منځه یوسو. موږ له (۳۰) کلونو راهیسې کار کوو. خو تر اوسه مو ونه کړای شو، چې د ماینون و چاودل له منځه یوسو. زموږ رئیس ښاغلی تاماس د ویتنامیانو او نورو سره کېناست او د ماینونو پر ضد مبارزه یې پیل کړه، چې افغانستان د دې مبارزې یو فعال غړی دی. موږ غواړو چې د ماینونو جوړول، سوداګري استعمال او ساتل په هر اړخیز ډول له منځه یوسو، البته په (سیاسي ساحه کې). د کمپاین په دې بهیر کې دوی یوازې د وسلې په برخه کې خبرې کولې او د دې د قربانیانو په برخه کې یې څه نه ویل. په جرمني کې یوه اداره ده چې د ماینونو په برخه کې کار کوي، دغه اداره غواړي چې لومړی باید د ماین له قربانیانو په برخه کې خبرې وشي. موږ وکړای شو، چې په نړیواله کچه په ځینو هېوادونو د ماینونو پر ضد معاهده ومنو. یو شمېر

داسي هېوادونه وو، چې ماينونه يې جوړول، خو د معيوبينو سره علاقمند وو. موږ غواړو چې د معيوبينو د هر اړخيزو ستونزو په برخه کې کار وشي.

د سپټيمبر له (۱۱) مې نه مخکې موږ په افغانستان کې کومه پروژه نه لرله، اوس مو پيل کړه. ميډيکو انټرنيشنل يوازې په سياسي برخه کې نه، بلکې له خلکو سره عملاً کار کوي. موږ د همدې هدف لپاره راغلو. د ماينونو د خبرتيا، اکشن او معيوبينو ته د خدمت لپاره راغلو. موږ (اومر) سره د ماينونو د خبرتيا په هکله ښه مرسته وکړه او ابرار سره مو د معيوبينو لپاره مرسته وکړه.

ميډيکو يوه وړه اداره ده چې (۲۳) تنه پکې کار کوي. فعاليتونه نه تطبيقوي، بلکې نورو ته يې ورکوي. زياته يې کړه، څلور اعشاريه پنځه ميليونه ډالره مرسته بايد له معيوبينو سره وشي. زه چې کله راغلم، نو ابرار هېڅ نه لرل، څيني عملاً هېڅ نه کوي. هاغه وخت موږ يوازې (۲۰) زره امريکايي ډالر لرل، نورې مو ورته له نورو سرچينو نه پيدا کړې. کله چې جرمني ته لاړو، کارېتاس او ډيکوني نه مو پوره کړې. زه ډېر خوښ يم چې تاسې دلته ياست او په کورسونو کې برخه اخلئ. د پای خبره چې بايد ويې وايم، دا ده چې پخوا دوو نجونو هم بايسکلونه اخيستي وو. اميد دی، چې د سولې او ډيموکراسۍ په راتلو کې جونې هم په دې لاره کې برخه واخلي. بايسکل ډېر ښه شی دی. زه له تاسې ټولو مننه کوم. که کومه پوښتنه لرئ، مهرباني وکړئ.

د معيوبينو په استازيتو ښاغلي عبدالظاهر د ابرار د پروګرامونو د ګټورتوب د يادونې په ترځ کې د ښاغلي سباشين او ورسره ملګرې نه مننه وکړه او هيله يې څرګنده کړه، چې په راتلونکې کې هم د دوی اداره له معيوبينو سره ورته مرستې وکړي. د غونډې په پای کې مېلمنو د ابرار فارغو معيوبينو ته د بايسکل کېلي ګانې ورکړې او تهيه شوي بايسکلونه يې پر هغوی ووېشل.



ښاغلی (سباشين) معيوبينو ته د بايسکلونو کيلي ګانې ورکوي

تر دې وروسته يې د ابرار موسسې د ګڼو فعاليتونو څانګې له نږدې وليدې او پوښتنو ته يې لازم توضيحات ورکړل شول.

د تللو پر وخت يې د ابرار موسسې له خپرونې (ډالۍ) سره لنډې مرکې وکړې، چې تاسې يې په انګليسي برخه کې لوستلو ته رابولو.

۲۷ جولای ۲۰۰۲ -

# جلالتماب محترم حامد کرزی رئیس دولت انتقالی اسلامی افغانستان

جلالتماب محترم

حضرت محمد ﷺ میفرمایند: "برداشتن موانع از سر راه مردمی که ازان رنج میبرند یك عمل نیك و پسندیده است" در طی بیست سال گذشته میلیون ها ماین زمینی یك سلاح کشنده در سر زمین ما فرش و مدفون گردیده وزمین های زراعتی، کوها ودشت و دامان کشور ما را ملوث ساخته و زندگی افغان ها را به مخاطره انداخته است.

به نمایندگي از علیا حضرت ملکه نور، سرپرست شبکه باز مانده گان ماین ها ی زمینی (جودی ویلیامز) برنده جایزه نوبل سال ۱۹۹۷ مخصوصا یکصد هزار نفر ۱۰۰۰۰۰ اهالی افغان که از اثر ماین های زمینی ومهمات منفلق ناشده مجروح گردیده اند شما را تشویق میداریم که افغانستان را در معاهده منع کلی ماین های زمینی داخل سازید کمال مسرت را داریم که دولت افغانستان مهماندار کنفرانس بین المللی "ایجاد اینده صلح امیز برای افغانستان: منع کلی ماین هاي ضد پرسونل" میباشد باپیوستون به معاهده زمینه انرا فراهم خواهد نمود تا افغانها بدون هراس د ر سرزمین خویش قدم بر دارند. کشور عزیز ما در حال التیام بخشیدن سال های گذشته زد وخورد های ملکی وجنگ ها می باشد. کمیته صلیب احمر بین المللي تخمین می نماید که سالانه در حدود ۳۰۰۰ نفر از اثر حادثات ماین ها ی زمینی معیوب ویاکشته می شوند. اکثرانها اطفال اند.

اشخاصیکه زنده می مانند، به مراقبت صحی، احیای مجدد، کار و وسایلیکه چرخ اقتصادی انها را به حرکت در اورد ضرورت دا رند. ما امید واریم که افغانستان توجه جهان را به سوی معاونت برا ی بازمانده گان ماین ها ی زمینی ودیگر قربانیان جنگ معطوف گرداند تاقربانیان وباز مانده گان ماینها ي زمیني بتواند در همه شئون زندگي مانند سایر افراد جامعه سهم مساویانه داشته باشند.

ماهم چنان از شما توقع داریم تا قانوني را وضع نمائید که همه معیو بین و باز مانده گان ماین های زمینی از همه امتیازات زندگی مانند سایر هموطنان خویش بر خوردار باشند.

عده زیادی از کشور هاي در اطراف جهان راههای و منابع را جستجو می نمایند تا در قسمت اعمار مجدد افغانستان از ان استفاده نمایند.

شرکت کشور ما در معاهده منع کلی ماین تمویل کننده گان را تشویق خوا هد نمود تا منابع بیشتر را به منظور پاکسازي ماین و کمك هاي بشر دوستانه تخصیص دهند حمایت شما از قرار داد منع کلي ماین نما ینگر ا نست که رهبر ي شما مردم افغانستان را دوباره مالك سرزمین زیبای شان می سازد. منحیث افغانانیکه از حادثات ماین متضرر گردیده ایم به اینده نگاه می کنیم که انشاالله از افغانستان بدون ماین هاي زمینی تجلیل بعمل خواهیم ا ورد، افغانستانیکه تمام باشنده گان ان فرصت کار را داشته و در صلح و ار امی زنده گی نمایند.

*مخلص شما*

*امضا باز مانده گان ماین هاي زمیني*

# د شهیدانو او معلولینو د ستونزو د حل لارې



د افغانستان د لنډ مهالي دولت دشهیدانو او معیوبینو وزیر ښاغلی عبدالله وردګ دوینا په حال کې



د سمینار دګډون کوونکو دغونډې یوه برخه

دافغانستان دمنځ مهالې ادارې دشهیدانواو معلولینو دوزارت له خواد شهیدانو اومعلولینو دستونزو دحل لارې په نامه درې ورځنې سیمینار چې دکابل ولایت دپولیتخنیک په تالار کې دروان عیسوي کال دسیتمبر دمیاشتې پر اته ویشتمه نیټه جوړ شوي و، ترېولړ غونډو اوخبرو وروسته پای ته ورسید.

په دغه سیمینار کې دافغانستان دټولو ولایتونو دمعیوبینو پر رئیسانو سربېره دجمهوري ریاست مرستیال ښاغلي کریم خلیلي، عبدالرب رسول سیاف، قاضي محمدامین وقاد، وحیدالله سباوون، د معیوبو ښځو په ګډون ښاغلې نفیسې اودمعیوبینو دوزارت سرپرست او معین هم ګډون کړی و.

دغونډې پرانېستونکې وینا ښاغلي خلیلي وکړه اودشهیدانو اومعیوبینو قرباني اوسربښندنې یې دډېرې ستاینې وړ وبللې.

د ابرار موسسې رئیس ډاکتر عبدالبصیر "توریالی" او ښاغلی عبدالله (وردګ)

د C D AP په استازیتوب ښاغلي ډاکتر نجیب الله خبرې وکړې اودفیزو تراپۍ دارزښت په برخه کې ښاغلي راضي خان دغونډې برخو والو ته لازم معلو مات ورکړل.

دسیمینارپه دربمه ورځ دولایتونو رئیسانو دخپلو نظرونو څرګندونه وکړه او دسنډیګال مؤسسې رئیس هم خپله وینا واوروله. ډاکتر محمد عارف په لنډه توګه دسیمینار موخې په ګوته کړې.

په پای کې دشهیداونو او معیوبینو وزیر ښاغلي عبدالله وردګ دشهیدانو او معیوبینو قرباني وستایلې او دفواید عامې اوترانسپورت له وزارتونو یې وغوښتل، چې دمعیوبینو دتګ راتګ ستونزې په پام کې ونیسي اوپه راتلونکې کې ورته اسانتیاوې برابرې کړي- هغه له ټولو مؤسساتو نه مننه وکړه، چې دمعیوبینو لپاره په فعالیت بوختې دي – دغه سیمنار چې د C D A P په مالي لګښت جوړ شوی و۔ دشهیدانو او معیوبینو دوزارت دسرپرست بازمحمد زرمتي په دعایه پای ته ورسېد.

# د افغاني معيوبينو د بايسکل ځغاستې سيالي

لوبې او بدني روزنې د انسانانو د ژوندانه او د هېوادونو تر منځ په اړيکو ساتنه کې حياتي ارزښت لري. سپورت کول که له يوې خوا د ستړي ژوندانه د بې شمېره ستونزو، سوچونو او نورو ځنډونو د هېرولو لپاره، غوره وسيله ده، نو له بل پلوه د روغتيا لپاره هم دومره ګټه لري، چې د اسلام دين يې هم تاکيد کړی. سربېره پر دې په نننۍ نړۍ کې چې لوبې د هېوادونو تر منځ د ښو اړيکو په پيدا ايښت، ټينګښت او غځولو کې څومره لاس لري، له دې نه هم انکار نه شي کېدای.

د همدې اصل پر بنسټ د ابرار خيريه موسسې له پيله دا زيار کښلی، چې پر نورو مرستو سربېره يې افغاني معيوبين نړيوالو بايسکل ځغاستو د سياليو لپاره، امريکا، کاناډا، لندن او اسپانيا ته لېږلي، چې هورې افغاني معيوبينو زموږ د سرلوړي هېواد استازيتوب کړی دی. له دې سره سره هر کال د معيوبينو د نړيوالې ورځې د نمانځلو په لړ کې د هېواد د ټولو ولايتونو په کچه دافغاني معيوبينو لپاره د بايسکل ځغاستې په زړه پورې سيالۍ، چې سلګونه معيوبين پکې ګډون کوي، جوړوي.



سږکال هم ابرار پتېيله ده، چې همداسې يوه لويه بايسکل ځغاسته د تورخم ـ جلال اباد پر سرك سر ته ورسوي. په دغه سيالۍ کې چې ډېر واټن يې (۲۵) کيلو متره او لږ يې (۵) کيلو متره دی، په سلګونو مغيوبين برخه اخلي. په دغه سيالۍ کې معيوبين په مختلفو ګروپونو وېشل کېږي، چې د هر ګروپ اتل ته نوی چينايي بايسکل، دويم ته د ګنډلو ماشين، دريم ته ساعت او ځينو نورو ته راز راز انعامونه ډالۍ کېږي.

دغه سيالي چې د روان کال د اکتوبر پر دېرشمه د سهار په (۷) بجو پيل کېږي، په (۱۰) بجو به پای ته ورسېږي. د سيالۍ په پای کې به د دوی په وياړ لويه غونډه جوړېږي او د معيوبينو د حقوقو، ستونزو او نورو چارو په باب به د غونډې ګډون کونکي خبرې کوي.

دغه سيالي که له يوې خوا د معيوبينو لپاره غوره تفريح ده، نو له بلې ډډې د هغوی تر منځ خپلمنځي اړيکې هم ټينګوي او معيوبينو ته دا روحيه هم ورکوي، تر څو د روغو وګړيو په څېر د ژوند په ټولو برخو کې فعاله ونډه واخلي او د راتلونکو نړيوالو سياليو لپاره وهڅول شي. خدای دې وکړي، چې د همدې په رڼا کې يوه ورځ افغاني معيوبين يوه ورځ د نړيوالو سياليو اتلولي وګټي او د خپل ويجاړ هېواد نوم روښانه او سرلوړی کړي.

# افغاني معيوبين لندن ته ځي

پنځه تنه هغه معيوبين، چې دماينونو له امله يې دخپلو بدنونو خواږه غړي له لاسه ورکړي ،له کابل نه دويلچرونو(درې ارابه يې ) باسيکلونو په وسيله لندن ته ځي. دغه خبر دمعيوبينو په هغه سيمينارکې چې دشهيدانواومعيوبينو دوزارت په نوبت دکابل دپوليتخنيك په تالار کې جوړ شوی و، اعلان شو. دغه معيوبين چې شيرين اغا ، روزي ګل ، نيك محمد ،عبدالسلام او عبدالرحمن نوميږي ، په اتو مياشتو کې به دپاکستان، هند ، امارات ، قطر ، بحرين، کويت ، سعودي عربستان، مصر، ليبيا ، تونس، ايتاليا ،فرانسې اوسويس له لارې لندن ته ورسيږي . ددغو افغاني معيوبينو دسفر موخه داده ،چې دسولې دماينونو دبنديزاو د افغاني معيوبينو دستونزو غږ نړيوالو ته ورسوي.

# مرکه

درنبولو لوستونکو!
دې گڼه کې مو د افغانستان دلنډمهالې اسلامي دولت دشهیدانو او معیوبینو له محترم وزیر ښاغلي عبدالله وردګ سره مرکه کړې ،چې تاسې یې لوستو ته رابولو

ښاغلي وزیر صاحب! که تر ټولو دمخه دافغاني معیوبینو دشمېر په برخه کې معلومات راکړئ، خوښ به شم؟

ـ یوخو هغه خبرې دي چې سیاسي خلك یې کوي ،هغوی وایي ،چې په افغانستان کې دوه نیم میلیونه معیوبین دي . ځینې مشران وایي چې، دوه مېلیونه شهیدان شوي اویونیم مېلیون افغانان معیوب دي. په هرترتیب تراوسه په کابل کې مونږ ۱۸۰۰۰ راجستر شوي معیوبین لرو . اوس موږ همدې منظور ګنوولایتونو اوولسوالیوته هیئتونه لیږلي ، چې سرشمېرنه وکړي. البته دایوډېر ګران کار دی اوډېر لګښت ته اړتیا لري .په کار ده ،چې موسسې اوحکومت په دې برخه کې له مونږسره مرسته وکړي.

تراوسه پورې دافغانستان دشهیدانو اومعیوبینو وزارت دمعیوبینو لپاره کومې چارې سرته رسولي؟

ـــ تراوسه موددولت په کچه دحمل له میاشتې راپه دېخوا دراجستر شوو معیو بینو سره دمیاشتې له دوونه تر دریوډالرو پورې مرسته کړې ، چې دایوه ډېره ناچیزه مرسته ده ، چې ددوی دکرایې لپاره هم بسنه نه کوي اومونږیې درې میاشتې وروسته ورکوو، په دې هیله چې څه ترې جوړشي .

ایادهغو غیر دولتي موسسو له کار نه ، چې دمعیوبینو لپاره په فعالیت بوختې دي راضی یاست ؟

ـــ موسسوبه کار کړی وي ، په دې کې شك نشته . خومونږ ورسره اوس مجالس پیل کړي او پخپله مو د همدې چارو لپاره یو کمېسیون جوړ کړی. موږ مؤسسو ته ځینې وړاندیزونه ددې لپاره کړي،ترڅوکارونه منظم شي اوناوړه ګټه ترې پورته نه شي – دبېلګې په توګه یومعیوب به څلور پښې جوړوي ،خوبل ته یوه هم نشته .

داچې په نړیوالو کنفرانسونو کې له افغانستان سره دډېرومرستوژمنه شوې وه ، دشهیدانو اومعیوبینو وزارت تر ې تر اوسه برخمن شوی اوکه نه ؟

ـــ ترکومه چې زه معلومات لرم ،کومې وعدې چې شوې ، تراوسه نه دي تر سره شوي .

○ محترم وزیر صیب! لکه چې خبر یاست دروغو په څېر معیوبین هم په نړیوالو سیالیو کې برخه اخلي. آیا افغاني معیوبین به په نړیوالو لوبو کې ګډون وکړي؟

ځ: که چېرې په دې برخه کې له موږ سره مرسته وشي. نو داچې موږ هم د بین المللي ټولنې غړي یو، نو افغاني معیوبین به خامخا نړیوالو سیالیو ته لېږو او دا یو نیک اقدام دی.

○ دابرار موسسې له فعالیتونو چې دتېرو یوولسو کلونو راهیسې یې معیوبینو ته ترسره کوي، راضي یاست؟



ښاغلی عبدالله وردګ د ډالۍ له مسئول سره دمرکې په حال کې

ــــ زه د ابرار موسسې نه مننه کوم، چې په ډېر اخلاص یې د معیوبینو خدمت کړی او ورسره له ټولو دولتي او غیر دولتي موسسو نه هیله من یم، چې دوزارت سره خپل کارونه هماهنګ کړي. تر څو کارونه په ښه ډول ترسره شي- داسې نه چې په یوه ځای کې د معیوبینو لپاره دوه - درې مرکزونه وي او په بله سیمه کې هیڅ نه وي.

○ په پای کې معیوبینو ته څه پیغام لرئ؟

ج . معیو بینو ته مې دا پیغام دی ، چې تاسې ستره قرباني ورکړې – دوی باید له زغم نه کار واخلي. که خدای کول یو پیاوړی حکومت به جوړ شي. مونږ دیو ه قانون د جوړولو په هڅه کې یو . کورونو ته دختلو وسایل به ورته برابر شي ، ترانسپورت ، روغتون ، ښوونه او روزنه ، حج ، سیاحت ، تفریح ، دخارجي بورسونو لاس ته راوړل . لنډه داچې د ژوند ټولې اسانتیاوې به ورته برابرې شي. د معیو بینو د قانون په رڼا کې به له دوی سره د کور، سو دا ګرۍ او پورونو په برخه کې مرسته و شي. هڅه به وکړو، چې په ټولو وزارتونو کې ورته کارونه پیداشي. څرنګه چې د هېواد ټولې اقتصادي اډانې له منځه تللي ، نو هڅه کوو، چې معیو بین داسې وروزو، چې هر چېرې ورنه کار پیداشي. همدا رنګه په دې کوښښ کې یو، چې معیو بینو ته داسې شرایط برابرکړو ، چې پېغلې له دوی سره پخپله خوښه ودونه وکړي، خو داټول کارونه په لنډ وخت کې نه کېږي . اوسنی حکومت هڅه کوي،چې ددې لپاره پا خه ګامونه واخلي، خو په کارده ، چې نړیوالې ټولنې له مونږ سره مرستې او پخپلو ژمنو وفا وکړي .

0 محترم وزیر صیب ! په تلو تلو کې که د(ډالۍ) داغیز منتوب په برخه کې مشورې راکړئ خوښ به شو؟

ـــ ډالۍ رښتیا هم ښه مجله ده ، ډېره ښکلې ده . خدای دې تاسې ته نور هم بری درکړي ، مونږ هم هڅه کوو، چې یو ه مجله ولرو. هیله ده ، چې تاسې به له مونږ سره مرسته وکړئ .

0 ډېره مننه . چې له ډیرو بوختیاوو سره سره مو له مونږسره مرکه وکړه.

*تاسې نه هم مننه*

# اعمار یک آینده صلح آمیز برای افغانستان

منع کامل ماین ها ي ضد پرسو نل

کابل ،افغانستان ۲۷ جولاي ۲۰۰۲

اعلامیه اقای مارتن باربر، رئیس UNAMA

جلالتمآبان. خانم ها وآقایان. برای من جای نهایت مسرور است که در این کنفرانس پراشتراك می نمایم . مادر یك مقطع کلیدی ایی از کارزار طولانی افغانستان در جهت رهایی از تهدید ماین های زمینی ومواد منفجر ناشده آمده ایم.

دیروز رئیس دولت ووزیر خارجه اظهارات قوی وتشویق کننده ای پیرامون رسالت حکومت ومردم افغانستان در قبال امحای این سلاح تروریستی ارایه داشتند . این کلمات هیجان خاص در وجود من ایجادنموده . من ازسال ۱۹۸۸ در انتظار چنین روزی بوده ام . در همان سال بودکه من در دفتر UNOCHA یعنی اداره انسجام کمك های بشر دوستانه برای افغانستان تازه به کار اغازکردم وبه زودی متوجه شدم که اهالی ملکي افغانستان تا کدام حدازناحیه خطرات ناشی ازماین های زمینی آسیب پذیرباشند.

بنا به کمك شماری کثیری ازدوستان گرانقدر افغان که امروز در اینجا حضور دارند وبرخی همکاران کلیدي بین المللي ماتوانیستم بر نامه فعالیت های ماین پاکی برای افغانستان را ایجاد نماییم که به ذات خود نخستین برنامه بشردوستانه ماین پاکی ملل متحد درجهان به شمار میرود . امروز آن پروگرام به سازمان وسیع وبالنده ای مبدل شده که در آن بیش از ۷۰۰۰ افغان غیور وفداکار ایفای وظیفه می نماید.

به خاطرباید داشت که مادراین راستا بدون کار وبیکار فوق العاده کمپاین بین المللي منع ماین هرگزبه سطح کنونی نمی رسیدیم.

بدین مناسبت مراتب سپاس بیکران خودرابه خانم جودی ویلیامز وهمکاران وی به خاطر این دست آورد سترگ ابراز مي داریم . به همین سان سپاس گذاري عمیق خودرا به کمپاین افغاني منع ماین ها وبه خصوص نخستین رئیس آن "سیدآقا" تقدیم می نمایم که به همین تازگي به حیث رئیس تیم ماین پاکی برنامه انکشافي ملل متحد در نیو یارك مقرر شده است.

طی سالیانی که ملل متحد برنامه های ماین پاکي در افغانستان را کمك نموده است ،ماشاهد پیشرفت های مهمی در این عرصه می باشیم . ازجمله ازمهمترین رویداد یعنی از میثاقی میتوان یاد آوري کرد که موضوع اساسی کنفرانس حاضر راتشکیل می دهد. یقینا طی سخنراني های سایر دوستان جزیات بیشتر این میثاق برجسته خواهد شد من فقط مي خواهم یادآورشوم که هر گاه افغانستان عضو کامل این میثاق گردد . ایجاب می کند که بعضی تغیرات نهایت مهمی رخ دهد.

بدین مفهوم که تا کنون معمول چنان بوده که دونرها فعالیت ماین پاکی ملل متحد را در آن ساحات کشور تمویل می نمودند که در آن جا ها جنگ پایان یافته بود ،درحالی که دربرخی از نقاط دیگر عین ماین ها تازه بذر می شد . این دیگر قابل قبول نمی باشد.

سازماندهی این کنفرانس توسط حکومت انتقالی افغانستان وهمچنان اظهارات دیروز رئیس دولت ووزیر خارجه به وضاحت نشان میدهد که انها خواستار تغیر می باشند.

مابايد درك كنيم كه آنچه آنها ومامی خواهیم عبارت از تغیر کلی درسلوك وياشيوه برخورد می باشد .رهبران نظامی درسر تاسر کشوربايد این پیام رابه عساکر خود انتقال دهد که ازاین به بعد ماین

سلاحي است غیرمجازو آنرا از زراد خانه های شان دور سازند.
اکنون لازم می بینم سخنی چند پیرامون برنامه ماین پاکی ملل متحد حضور تان ابراز نمایم. درحال حاضر ملل متحد برنامه های ماین پاکي رادر ۳۵ کشور جهان تمویل می نماید .مابرنامه های آگاهی پیرامون ماین ها ، ماین پاکي به شمول سروی وعلامه گذاری ،کمك به قربانیان ماین ، امحای ماین هاي که ذخیره شده اند ، وبرنامه حمایت ازمنع کامل ماین ها ي زمینی راکمك و تمویل مي نمایم.
آن عده ازنماینده گی های ملل متحد که دراین فعالیت دارند عبارت از ,UNMAS. UNOPS, UNICEF and UNDP. می باشد.
دراستراتیژی ملل متحد برای سال های ۲۰۰۱ الي ۲۰۰۵ ماشش هدف رابرای کار وفعالیت خود تعین نمودیم . دراین جامیخواهیم که چندکلمه پیرامون هریك ازاین اهداف خدمت تان ارایه کنم.
اطلاعات:
دردنیا ماین پاکی هیچ چیزي به اندازه اطلاعات درست حایز اهمیت نمی باشد . به گونه مثال، ما باید بااطمینان به مهاجرین عودت کننده گفته بتوانیم که آیا قریجات شان ماین گذاری شده یا خیر . مابايد قادر باشیم تقشه ساحات ماینزار رابه مردمانی عرضه داریم که پلان دارند تادر آن مناطق کارنمایند . دراین استقامت مهمترین همه IMSMA (Information management system for mine action) می باشدکه ازطرف مرکز بین المللي ماین پاکی بشر دوستانه واقع در ژنیو تهیه گردیده و تازه در فعالیت های ماین پاکی افغانستان معر فی می شود.
کمك اضطراری وکمك به مقامات ملی:
کمك که ازجانب ملل متحد به بر نامه های ماین پاکی در افغانستان عرضه می شود درواقع بخشی ازیك برنامه كمك بشردوستانه اظطراري می باشد . اکنون ماتعهد درازمدت نمودیم تاظرفیت های حکومت افغانستان راتوسعه بخشیم . ماعین کار رادرتمام کشورها انجام می دهیم.
هرکشوری که از ماین متاثر شده، است به یك پلان ملی ضرورت دارد که در آن ساحاتی که نیاز مبرم دارند و همچنان اولویت ها تصریح گردد. بهترین شیوه طرح وتهیه چنین یك پلان ملی عبارت از ( LMIS Landmine impact survey (می باشد. تاکنون پنج کشوراین سروی را تکمیل کرده اند . سروی مذکوردر هشت کشور دیگر به شمول افغانستان.
منجمنت کیفی :
ماین پاکي مي تواند خطرناك باشد . این خطرات فقط در صورتي به حد اقل تخفیف می یابد که توجه مداوم به کیفیت مبذول گردد. دراین راستا ملل متحد برنامه راتمویل نموده است که هدف آن انکشاف یك سلسله موازین واستندارد های بین المللي می باشد وبنام (IMAS) international mine action standardsیادمي شود. این استاندارد هاآز جانب کشورهاي متاثر از ماین پذیرفته میشوند . بسیاری ازاین استاندارد ها ازطرف افغانستان تهیه شده است .
انسجام و بسیج منابع :
ملل متحدمی تواندر امر انسجام فعالیت های ماین پاکی وتامین منابع مالی آن کمك کند. افغانستان یکی از نمونه های است که این کار درآن خوب صدق می کند .
کلمه انسجام در این بدین مفهوم است که چگونه حکومت،ملل متحد ،وموسسات یکجاوبه طور موثر کارنمایند . ولی مابه کمك مداوم دونرها ضرورت داریم تا بتوانیم بودیجه مطمئن چندین ساله پس ازسال ۲۰۰۲ داشته باشیم .
حمایت :
حمایت وپشتبانی پدیده ای است که امروزمارابه این مجتمع کشانیده است . ملل متحد مسولیت دارد که ازکوشش ها ی حمایت کند که همه کشور های جهان را در جهت پیوستن به این میثاق تشویق نماید وآماده است آنها رادر جهت تحقیق مکلفیت های شان یاری رساند .برمبنای همین مسولیت ها است که امروز تیم ملل متحد توام بامساعي وسیع همکاران شان در حکومت و ICBLتوانست کنفرانس حاضررابه یك پیروزی مبدل سازند.
ماتصمیم داریم تازمانی درکنارشما باشیم که این کشور از تهدید ماین مصئون گردد.

# په اسلامي ټولنه کې د معیوب مقام او حقوق

قاضي سلطان محمود (صلاح)

په تېر پسې

۲- د نفقې حق:

الله تعالیٰ د بقرې سورت په ۲۳۳ ایت کې فرمایلي دي "او ده په هغه چا چې ورته زېږول شوی دی (پلار) روزي ددوی (میندو) او کالي ددوی. او داسرا ءسورت په (۲۳) ایت کې فرمایي. (او حکم فرمایلی دی رب ستاچې له الله پرته دهېچاعبادت مه کوئ او (احسان کوي) له والدینو سره (مور او پلار) سره په احسان کولو سره. داسرا سورت په (۲۶) ایت کې فرمایي: (او ورکوه ای بنده) خاوند دخپلوی ته حق دهغه او (ورکوه) مسافرته او اسراف مه کوه په اسراف کولو سره. رسول الله فرمایي: (لومړی دځان نفقه برابره کړه وریسې دعیال او خپلوانو. په بل حدیث کې فرمایي (مرسته کوونکي او مال ورکوونکي لاس اوچت دی او لومړی هغه چاته نفقه ورکړه، چې خپلوان دې دی. لکه مور، پلار، خور، ورور او بیا نژدې پسې نژدې.

فقهاوو ددې مبارکو ایتونو او احادیثو په رڼاکې په دې خبره تصریح کړې ده چې مور او پلار په اولادونو او اولادونه په مور او پلار او په همدې ترتیب سره خپلوان یو په بل دنفقې حقوق لري او مکلف دي. چې دا حق ادا کړي. او نفقه عبارت ده له خوراک، څښاک، لباس، داستوګنې ځای دپاکۍ او مینځلو اسباب او سامان حتی خادم او مزدور که ضرور و. په دې هکله دفقهې

کتابونو مفصل بیان کړی دی خو مونږ دلته په ډېر لنډیز سره ضروري ټکي رانقلوو.

څوک چې مسکین وي څه ونه لري. د کسب او کار توان هم ونه لري. یعنې یا ماشوم وي او یا داسې بیمار او معیوب چې کسب او کار او مزدوري ونشي کولی. نو په دې صورت کې دده ټوله نفقه دده په نږدې خپلوانو لازمه ده. خو په دې شرط چې هغه خپلوان یې مالدار وي ولري او یا دکسب او کار او مزدورۍ توان ولري او کنه نو وربانديې لازمه نه ده. دا حکم عام دی هر څوک چې پخپله مسکین وي، دکار او مزدورۍ توان ونه لري عاجزوي، نو دده نفقه په نورو خپلوانو لازمېږي او څوک چې دا حق نه ورکوي. نه یوازې ګنهګار دی، بلکې حکومت هغه باید مجبور کړي، چې دهغه مسکین نفقه ورکړي. په دې هکله رسول دخدای فرمایي (دیوه سړي لپاره همدومره ګناه بس ده چې له خپلوانو نه دهغوی خوراك وسپموي. یعنې وریې نه کړي).

خو که یو څوک داسې و، چې هم غریب واو هم له کار او مزدورۍ نه عاجز او هېڅ داسې خپلوان یې نه درلودل چې دده نفقه وربا ندې لازمېده او یا هغوی پخپله هم د فقر او یا بیمارۍ له امله دده دنفقې توان یې نه درلود، نو په دې صورت کې داسلامي حکومت وظیفه ده. چې ددې ډول کسانو نفقه په غاړه واخلي او عزت مند ژوند یې تضمین کړي.

**دمعالجې او تداو حق:**

په اسلام کې علم او پوهه ډېر لوړ مقام لري. په دې هکله همدادلیل کافي دی. چې د

قرانکریم لومړنی نازل شوي ایا تونه دلوستلو ښوولو په هکله دي. الله تعالی حضرت محمد صلي الله علیه وسلم ته فرمایي: ( ولوله ای محمد صلی الله علیه وسلم په نامه درب خپل چې پیداکړی یې دي مخلوقات پیداکړي یې دي انسانان له ټوټو له تړل شویو وینو څخه . ولوله ای محمد ﷺ حال داچې ستا رب ډیر کریم دی هغه رب چې ښودلی یې دی خط انسان ته په قلم سره، ښوونه یې کړې ده انسان ته دهغو شیانو چې دی پرې نه پو هیده).

امام مسلم روا یت کوي، چې رسول صلي الله علیه وسلم فرمایلي: " ( کله چې انسان مړشي، نو عمل یې قطع او بند شي، خو یوازې ددریو شیانو ثواب ورسېږي: صدقه جاریه، علم چې ګټه ورنه اخیستل کېږي او صالح او لاد چې دعا ورته کوي.

د اسلام مقدس دین دعلم او پو هې دین دي، ټول مسلمانان نر دي او که ښځې ، روغ دي که معیوب، په دې مکلفوي، چې څه زده کړه او نو رو ته ښوونه وکړي، ټول علماء په دې اتفاق لري، چې په هر مکلف مسلمان یعنې هغه چې د اسلام احکام ورباندې تطبیقیدلی شي، دا فرض عین دی، چې ددین اصول او ضروري شیان زده کړي او بیا دنورو علو مو دنیوي دي، که دیني، زده کړه فرض کفایې ده، یعنې اسلا مي ټولنه مکلفیت لري، چې د ټولنې او افرادو د خدمت لپاره ضروري ټول علوم خواره او نشر کړي یعنی مسلمان باید دوطن د ترقی او ابادۍ لپاره لازم علوم او فنون زده کړي، خو دا لکه ددین د اصو لو زده کړې غوندې نه ده، چې په هر مسلمان فرض وي بلکې داپر ټولنه فرض دي او د ټولنې یو څه غړي باید دغه علم او څه نور هغه بل علم او ... زده کړي تر څو دا حکم ورنه سا قط شي او که هېڅا زده نه کړل، نو بیا ټولنه مسئوله او ګنهګاره ده.

رسول صلي الله علیه وسلم فرمایې: (دعلم زد کړه حاصلول په هر مسلمان فرض ده، په دې حدیث کې د مسلم لفظ عام دی. نر ، ښځې جوړ او نا جوړ ټول ورنه مراد دي).

طبراني روایت کوي، چې رسول صلی الله علیه وسلم فرمایي ) څه په هغه خلکو چې خپلو ګاونډیانو ته علم نه ورښیي ښوونه نه ورته کوي ، او وعظ او نصیحت نه ورته کوي، او په ښو کارونو ورته امر او له بدو کارونو نه نهی کوي، او څه شوي په هغو خلکو چې له خپلو ګا ونډیانو نه زده کړه نه کوي علم نه ورنه اخلي ، نصیحت یې نه اوري، قسم په خدای(جل جلاله ) چې ټول به خپلو ګاونډیا نو ته ښوونه کوي علم به ورزده کوي وعظ او نصیحت به ورته کوي به نېکو به امر او له بدو به یې نهې کوي . او ټول به له خپلو همسا یګانو نه زده کړه کوي علم به ورنه اخلي ) نصیحت به یې اوري او که نه نو د سزا او جزا چاره به یې وکړم، په زور به یې دې کار ته مجبور کړم دا مبارك حدیث ټول مسلمانان د علم په زده کړې او ښوونې مکلفوي او مسلما نا نو ته امر کوي چې په دې کار کې یو بل ته لاس ورکړي. اود علم په زده کړه کې دعمر، شکل، صورت، قد او قامت او څه داسې شرطونه نشته، دا د هر مسلمان او انسان حق دی، چې باید عالم وي.

مور او پلار او نور پا لونکي او روزونکي باید خپلو ما شومانو ته دزده کړې وسایل او اسباب برابر کړي او داسي ونه کړي، چې روغ دې زده کړه وکړي او معیوب دې ورنه محرو . ی برخې وي. معیوبان لکه دنورو

# ماین

(زلمی)

مـــاین زمونــــړه ارمــــان وژنـــې
حیـــوان وژنـــي انســـان وژنـــي

ړونـــد او کـــوڼ دې لاس ورنـــه وړي
دښمـــن وژنـــي دوســـتان وژنـــي

ورانـــــوي آبــــاد کورونـــــه
ســـــوځوي شـــنه چمنونـــــه

پلونـــه وران کـــړې ســـرك وران کـــړي
ســـاربان وژنـــي کـــاروان وژنـــي

دشـــــپیلۍ اواز بـــــه نـــــه وي
غـږ بـــه نـــه وي ســـاز بـــه نـــه وي

څړځایونــــه بـــه ســـپېره کـــړي
رمـــې وژنـــي چـــوپـــان وژنـــي

دبانـــډو ځینـــي تـــر ښاره
دژونـــــدون پـــــه هـــــره لاره

دښمـــن ناســـت دی پـــه غضـــب دی
زاړه وژنـــي ځوانـــــان وژنـــي

ســـیند او غـــر تـــرې ارام نـــه دي
لاپـــې شـــرهم تمـــام نـــه دی

څه یـــې مـــړه څه یـــې ګوډان کـــړل
ارمـــان وژنـــي جـــهان وژنـــي

منـګـې مـــات شـــول ګـودر وران شـــو
جونې مړې شوې هـای سوران شو

ګودرغـــــاړه شـــــوه خونخــــواره
عاشـــق وژنـــي جانـــان وژنـــي

ځیـــړې ســـیزي، ښتـــر ســـېځي
کـــاني بـــوټې شـــجر ســـېځي

دغمونـــــو جـــــوړ مـــــاښام دی
درمـــل وژنـــي درمـــان وژنـــي

اوبـــه خورتـــه نیمـــه شـــپه کـــې
یکـــه زارنیمـــه نغمـــه کـــې

یـــوه کړیکـــه شـــي راپورتـــــه
ځمکـــه ســـېځي دهقـــان وژنـــي

ډېر ظــــالم اوبـــد دښمــــن دی
مـــــخ نـــــاولی دی پمـــــن دی

یـــــوه نــــښه د وحشـــت ده
زمیـــن وژنـــي زمـــان وژنـــي

داپیغــــــام د اومـــــــر واورئ
دغــــــه درس او خـــــبر واورئ

مـــــاین دښمـــــن د انســـــانیت دی
( زلمـــی ) وژنـــي انســـان وژنـــي

خو يوه ورځ يو نا څوانه ماين ورڅخه يوه پښه دخپلې چاودنې په تا وان کې وا خيستله.ددوو پښو خاوند يې يوې پښې ته کېناوه. کله چې ښايسته ګل دژوند دناخوالو توپان پر مخ اخيستي و اودژوند په دې لوی اوستر ډګر کې ورته يوه نرۍ لاره اودرنيا يوه وړه درينڅه هم نه ښکاربده .دچاپه لارښونه يې دابرار موسسې دشهيد قاضي محمد نذير ( سعيد ) مرکز ته يې مراجعه وکړه.

ښه مې په ياد دي، کله چې نوموړی په موسسه کې دا خل شو او ما ورته دسواد ( ليك لوست) زده کړه ورکوله،نوکله به چې ما درس ورکاوه، د ښايسته ګل دټولګي ټولو ملګروچې دبرش تنه وو. په ډېر دقت سره به يې زما خبرې اورېدلې اود تورې تختې خواته به يې کلکه پاملرنه کوله. خويوازې ښايسته ګل وچې جسماً په ټولګي کې و. او ذهناً خدای(ج) پوه شه چې چېرته يې دخيال په وزرونو کې چکرونه وهل. کله چې زه ورته څير شوم. دتدريس داصولو پر بنسټ چې ښوونکی بايد دخپلو زده کوونکو سره په دغسې حالت کې څه وکړي؟ تر څوداسې زده کوونکي خپل درس ته متوجه کړي.

خو ما چې دمعلمۍ جمتر(منتر) ټولې عمليې تر سره کړې، پايله يې بيا هم هما غه زړه په زړه وه .نو ديو بل تکتيك څخه مې کار واخيست او هغه داچې ښايسته ګل مې په ټولګې کې ودراوه او ورته ومې ويل. چې زه ستا معلم يم. ته چې له هرې ستونزې سره مخ يې ما ته يې په ښکاره ډالۍ ټکو کې ووايه. کيدای شي، چې مونږ له تا سره دهغې په له منځه وړلو کې مرسته وکړو، خو ښايسته ګل بيا بيا انکار کا وه چې دا داسې خبره نه ده چې زه يې دلته دټولو په مخکې ښکاره کړم.

مابيا ورڅخه په ډېر درناوي سره وغوښتل چې وروره ته خومعيوب يې دې کې شك نشته،مګر ته چې دچا په منځ کې نا ست يې، دا هم ټول معيوبين دي او ستا په ملګروکې پنځه کسه داسې معيوبين دي، چې دواړه پښې يې له لاسه ورکړي ،تا سې په يوه کبنتۍ کې سپاره يې، دا ټول ورونه ياست او د ټولو درد يو دی. دا چې درد مو يو دی. خوښي او لاره به مو هم يوه وي. شرم په دې کې نه دی، دشرم ځای دادی چې مونږ مشکل ته دحل لاره پيدا نه شو کړای. په پا ی کې ښايسته ګل راضي شو اوخپله خبره يې داسې پيل کړه:

معلم صيب: زه چې جوړ وم، ګټه مې کوله. مور ، پلار ، ورونو .خويندو او خپلې مير منې ته ډېر ګران وم اوډيرقدر مې کېده.کله چې معيوب شوم. نو ټولوخپلوانو را څخه لاس واخيست. را څخه لاړل. زه يې په يو سردژوند کړاوونو سره دټکر لپاره پرېښودم. دا خو لاڅه چې خپله ارتبنه مې هم هر سهار پېغور راکوي چې اوس معيوب شوې کار نه شې کولای....او نور....نو دومره خوکوه چې زماله سترګو پټ کېنه، چې دا....څهره خو دې هره لحظه ونه ګورم.

ښایسته ګل چې کله خپلې خبرې تمامې کړې. ما ورته بیا په یوه انداز کې وویل.وروره ته چې کله دې موسسې څخه فارغېږې نو ټول خپلوان به دې بیا در خپل شي،او هغه قدرونه چې مړه شوي دي، بیا به را ژوندي شي. له خپلې مېړ منې څخه دې در واخله تر نورو خپلوانو به دې ټول دپخوا څخه څو ځله زیات عزت او قدر کوي.ښایسته ګل بیا زه مخا طب کړم اوراته و یې ویل:معلم صیب! دا یو با سیکل ګی به زما دژوند لاره څرنګه بدله کړي؟!

ما ورته وویل: ددې با یسکل ګي برکت به هلته وګورې، چې ور کا ر ورڅخه وا خلې!

کله چې ښایسته ګل له ابرار څخه فارغ شو، په خپل با یسکل. چې ابرار ورېیا ورکړي و او په بایسکل یې ځینی حرفوي کا رونه ورته ښودلي وو. ښایسته ګل یوا ځې دچا قو ګانوتېره کولو څرخ پخپل با یسکل نصب کړی و. څو څومیا شتې وروسته ښایسته ګل دخپل با یسکل سره زمونږ لید لو ته راغی. ښایسته ګل هغه نه و چې پخوامو لیدلی و. دښکلې ښهرې اودجامو څخه یې له ورا یـه د بدلون علامې اونښې ښکا ریدلې. کله چې ورڅخه پو ښتنه وشوه چې حال دې څرنګه دی. له ډېرې خوښی یې خوله نه را ټولېدله . سپین غاښونه یې په سروشونډو کې لکه دتیرا ږلی له ورایه ځلېدل او خبرې یې دا سې پیل کړې:

کله چې زه کور ته لاړ م او ګټه وټه مې په دې معیوب ځان پېل کړه ټولو خپلوانو ته مې بیا قدر پیدا شو او خپله مېړ من خو مې دومره قدر کوي، چې پخوا یې هم هېڅکله نه وکړي . اوس چې کله له کاره راشم او دبا یسکل زنګ وغږوم، مېر من مې راته لکه دسر چوك انضبا ط تیا رسی، سلامي ولاړه وي. خپلو لونو ته قومانده ور کوي چې، هله پلار جان مو راغی، سترې دې کټ او با لښت ورته چمتوکړئ. چای ورته راوړئ تر څوارام شي.

لنډه دا چې پخپله ټولنه کې هېڅوك پخپل سر پوره نه دي او ټول یو د بل مرستې ته اړ وي او معیو بین خو بیا په ټولوحق لري، هغه هم په یوه داسې ټولنه کې چې د ټیټا نیك کشتۍ په څېر دړې وړې او ټوکړې ټوکړې د سمندر تل ته کېو تې وي.

معیوبینوسره باید کار وشي، ترڅوکار ته چمتو شي. دغسې کړنه کې ددنیا او اخرت ګټې پټې دي.

دا چې دغسې کارونه دخدای درضا با عث ګرځي او دا دژوند ډېر غټ ضرورت او اړتیا هم ده، دا چې ټولنه دځان غم نشي خوړلې، نو دمعیوب غم به څرنګه وخوري؟!

خود خدای رحم دی داسې لارې چارې شته چې سرې تري کارواخلي او د معیوب پېټی خو دنورې ټو لنې له سره څخه کم کړي.

# دغرو قاموس

## غ.ي

**سر :-**

سر یو داسی بیرغ دی، چې توریالي او غیرتي خلك یې په پرله پسې توګه د لوړ ساتلو کوښښ کوي، خو سپك او بې غیرته یې په ټیټولو کې هېڅ پروا نه لري .

**ماغزه :-** د یوه څراغ مثال لري، چې خلك یې د رو ښانولواویا تیاره کولو هڅه کوي .

**مخ :** - خدای ﷻ هر چاته یو مخ ورکړی دی، خو په ژوندانه کې په دوو یا څو لارو قدم ږدي .

**پزه:** - چې ځینې خلك یې پوزه او ځینې یې دماغ هم بولي . الله پاك ﷻ خپل مخلوق ته د بویولو دوسیلی په توګه ورکړې . خو خلك هڅه کوي، چې په فارسي ژبه یې بیا دماغ سوخته بولي .

**ژبه :-** هغه وسیله ده، چې د ښېګڼې د پاره په کار وړل کېږي، خو ځینې وخت د بدۍ کولو د پاره هم په کار راتلای شي . خاوند یې چې هر ډول غوښتې وي، په همغه ډول یې پکار ولی شي . خو تر ټولو به ښه داوي چې هر څوك په دې وپو هېږي چې ژبه هم هوسیانې ته اړتیا لري .

**لاسونه :-** د کار کولو او ډوډۍ پیداکولو وسیله ده. که ناپاکه وي، نو د نیل لوی دریاب به یې هم دپرېوللو توان ونه لري .

**ګوتې :-** د ښنلو او ډالۍ کولو وسیلې او د همدې دپاره پیداشوي دي، خو کله کله یې ځینې دوهلو، سوځولو او غلا دپاره هم استعمالوي .

**زړه :-** زړه دیوې خزانې مثال لري، چې ځینې وګړي په کې دوستي ، خیر غوښتنه او لورینه ټولوي او ځینې یې رخې او کینې څخه ډکوي .

**غوږونه :** - د اورېدلو وسیله ده، خو تاکلې اندازه لري. ځینې خلك یې له ټاکلې اندازې څخه زیات څلوي ( اوچتوي )، تر څو د خلکو د پټو خبرو څخه هم ځان خبر کړي .

# دچین شي هوانګ ستر یاد ګار

پوهنیار عبد ا لوحید
دننګرهار دپیداګوژۍ انستیتوت علمي مرستیال

دتاریخ پاڼې مونږدلرغونو دورو دانسانانو
د ثقافت دبېلابېلو څانګواوړخونولکه
دمجسمودجوړولوهنر، شعراوادب، دین
اومذهب، جګړې، دمړي او ودونوددودونواو
داسې نوروپه هکله له په زړه پورو معلوماتو
څخه خبروي . دیادوشووڅانګوڅخه یوه هم
معماري ده.دمعمارۍ فن دتاریخ په مختلفو
دوروکې په مختلفو څانګو باندې وېشل
شوی، چې دهرې څانګې په زړه پورې نښې
او یادهغو پاتې شونې دنړۍ په
مختلفوبرخوکې پیدا کولی شو. دمعمارۍ
دفن تر ټولو زړه راښکونکې منظره چې لا
تراوسه بې مثاله ځلېږي، دهند داګرې په
ایالت کې تاج محل دی، چې هر کال په
میلیو نونوسیلا نیان ځان ته را کاږي.ددې
لړۍ یوه بله ښکلې منظره، چې زمونږ دهېواد
په جنوب لوېدیځ کې مو قیعت لري، دجام
منار دی چې، د غوري پاچا سلطان شهاب
الدین ددورې یو یادګاري میراث ګڼل کېږي.

پخوانیو شاهانو لوړې دنګې ودانۍ،ځلي
یا منارونه او نورې نښې دخاصو مو خولپاره
جوړولې.دبېلګې په ډول: تاریخي شواهد
ښیي چې ځینو پاچاهانوبه ددښمنانو سزه
دمقابلې لپاره له ښارونو ګردچاپېره لوړ
ډالی

دېوالونه جوړول، چې دډېرو
ستروديوالونوڅخه دعربانوپه مقابل کې
د(هیلوپولیس) دښارڅخه د( پلوزیوم) تربندره
پورې دمصر د فرعون (دوهم رامسیس) په
وخت جوړشوی دیوال، د(پلوپونزوس)
ټاپووزمې ته
دهخامنشیانودشاهنشاه(خشیارشاه)
دپوځونودمخنیوي په خاطرپه یونان کې
د(کنزت) دېوال داسپارتیانوپواسطه، د(
سکایي)قبایلو دیرغلونو دمخنیوي لپاره
دسلواك پاچا( انتیوخوس)دېوال چې داوسنۍ
سوریې د( مرګیان) په سیمه کې د ۲۰۰
کیلومترو په اوږدوالي جوړشوی دی ، دژول
سزار رومي اتل پاچا دېوال چې د( هل وت)
دقبایلو په مقابل کې د ( ژنیو) دسین اود
(ژورا) دغره تر منځ جوړشوی دی ،
دوحشیانو په مقابل کې د (سلوې ) دخلیج
څخه د( راین) دسین تر پا یه پورې د ۱۲۰
کیلومترو په اوږد والي دېوال دروم دامپرتور
( ادریانوس) په امر جوړشوی دی او
همدارنګه دروم امپراتور ( والانسیوس) په
واسطه جوړشوی. هغه دیوال چې د(نواب)
دسین څخه دتور سمندرګي تر څنډوپورې
رسېدلي، دیادولو وړ دي. خوپرته دچین

ددیوال ځخه دذکر شوو دېوالونو ځخه یوهم دوحشي ېرغلګرو دیرغلونودمخنیوي وړتیا له ځانه ونه ښوده . کوم دېوال چې اوس هم دچین په خاوره کې لوړ دنګ ولاړدی چیني امپراتور ( چین شي هوانګ ) جوړکړی دی او دهغه تر مړینې وروسته څوځو ځلې ترمیم شوی او د ( مینګ ) دلړۍ دشاهانو په واسطه چې د ( ۱۳۷۰-۱۶۴۴ ) کلونو تر منځ دچین په خاوره کې یې سلطنت درلود نور هم پسې غزېدلی دی .د بادونو او سیلابونو له وجې دېوال ویجاړ شوی دی . په هر صورت دچین دغه ستر دېوال دیو ستر پا چا دقدرت ،ټینګ هوډ او دیو بې وزله ولس دزغم ډېرې کیسې خوندي کړي دي.

دچین دېوال دبشر په وسیله تر ټولو ستر فعالیت او دحېرانتیا وړکار دی چې تر اوسه دنړۍ پر مخ سرته رسیدلی دی . داسې ویناوې او شواهد هم شته، چې وایي: دحضرت آدم (ع) دزامنو په واسطه یوازیني فعالیت چې دسپوږمۍ دکرې ځخه له اپتیکي آلاتو پرته په سترګو لیدل کېږي، دچین همدغه ستر دېوال دی .دهغوموادوځخه چې ددې دېوال په جوړولوکې تري کار اخیستل شوی کولای شوداستوا دفرضي کرښې پر مخ ددوه نیم مترو په لوړ والي او دنوي سانتي مترو په پېړوالي سره یو مکمل دېوال جوړکړو. په کال ۱۹۷۰ کې یو برتانوي انجینر په پرتلیز ډول دځېړنو ځخه دا سې نتیجه تر لاسه کړه، چې دانګلستان ، سکاټلینډ اودویلز دټولو کورونو اوودانیو دمصرف شوو ډبرو په پر تله دچین په دېوال کې زیاتې ډېرې لګېدلې دي . دچین دېوال دهغې سیمې ځخه پیل کېږي، چې دسمندر دسطحې ځخه ډېره ټيټه ده .

دېوال دچین په کږووږو غرونو اوغونډیو کې په تدریجي ډول دځلور زره متره لوړوالي ځخه هم لوړېږي اوپه پای کې دتبت په مرموزه ایالت کې پای ته رسېږي. په مستقیم ډول ددېوال دپیل اوپای تر منځ ۱۸۰۰ کیلومتره واټن دی . مګرددېوال حقیقي اوږد والي د ۴۰۰۰ کیلو مترو په شاوخوا کې دی . ددېوال اصلي جوړونکی دچین امپرا تور ( چین شي هوانګ ) دمیلاد ځخه ۲۴۶ کاله وړاندې ددیارلس کلنۍ په عمر دچین په مستقل ایالت کې چې اوس (چین سي) بلل کېږي دواك په ګدۍ کېناست . په دغه دوره کې دچین د نومیالیو امپراتورانو دلړۍ چې د ( چو) په نامه یادیږي او تقریبا ۸۰۰ کاله یې دچین په خاوره کې حکومت کاوه ، دواکمنۍ وروستۍ شېبې وې . سره له دې چې د (چو) دامپراتورۍ دحکومت په دوره کې مشهور فیلسوفان لکه : کنفوسیوس ، من سیوس اولاټوتسه دچین ولس ته دښوونې او روزنې په ډګر کې زیات خدمتونه کړي دي، خوسره له دې هم کورنۍ جګړې دچین امپراتوري دوېش او ټوټه کېدو سبب کړه . که څه هم (چین شي هوانګ ) دمورله اړخه بې نسبه اودیوي ړندې (ډمې) زوي و، مګر په لویه غوښتنه کې یې ساري په تاریخ کې نه دي لیدل شو ي. نوموړي دپوهواو باتجربه وزېرانو دمټ او فکر په زور دچین په یاغي ایالتونو یرغل وکړ اود اووکالو په موده کې یې دچین سرحدونه داوسني چین دشمالي سرحدځخه د ( یانګ تسه کیانګ ) تر سینه او د زیړ سمندر ګي ځخه د( سه چوون) تر ایالته پوري ورسول .

امپراتور ( چین شي هوانګ ) دچین دهغه مهال پایتخت ( هسین یانګ) کې ځانته

داسې مانۍ جوړه کړې وه چې زرګونه خونې يې درلودې. ددې شاهي مانۍ په يوه تالارکې دلس زرو کسانو دناستې لپاره ځاې موجود وو. په تاريخونوکې ليکل شوي دي چې دامپراتور ۱۳۱۴۰ ښځې به په ښايسته جلاجلا کوچنيو مانيو کې او د پاچا نور درباريان هم په ښکلو جلاجلا مانيو کې دشاهي مانۍ په چارچاپيره اوسيدل. چې په ټولنيز ډول نوموړې ټولې مانۍ ۳۲۰ کيلومتره مربع ساحه نيولې وه. هغه وخت چې (چين شي هوانګ) دچين دلويې امپراتورۍ په تشکيل بريالی شو، دچين دلرغوني پوهې يانجوم دپوهانو لهٔ خوا ده ته د (هي نګ تو) دوحشي قوم په واسطه دده واك د له منځه تلو خبر ورکړ. داچې د (چين شي هوانګ) سره دوحشيانو دمقابلې وس نه وو، هوډيې وکړ، چې د (هي نګ تو) او (هون) دقبايلو مخه ديو دېوال په جوړولو ونيسي. داسې يو دېوال چې ددښمن پلې او سپاره ځواکونه دهغه څخه دتېريدو توان ونه لري.

تراوسه پورې هم په چين کې يو متل پاتې دي چې وايي «دسهيلي زمرۍ څخه مه ويريږه، خوکه دشمال له لوري که کوم چرګ هم راشي نوورته چمتو اوسه.» دا متل څکه ويل شوي دي چې د (چين شي هوانګ) دامپراتورۍ څخه کابو ۵۰۰ کاله دمخه هم دمغلو، تاتارو، هون او هي نګ تو د وحشي قومونو لخوا به چين خاوره تر سختوبريدونو لاندې نيول کېده.

(چين شي هوانګ) دستر ديوال دجوړولو لپاره دخپلې امپراتورۍ ټول ځوانان راوغوښتل، وژونکي اوغله قيديان يې له بنده خلاص کړل. ليکوالان او هنرمندان چې دقلم اوليکنې څخه پرته له نورو شيانو سره يې ګوتې آشنا نه وې، دتيرو په ماتولو او توږلو وګمارل. په حقيقت کې امپراتورټول ولس دې بيګار ته اړ ايستلي وو. لکه څرنګه چې دچين په تاريخ کې راغلي دي. دهرودرې تنه نارينه و څخه يوتن دديوال دجوړولوپه کار وګمارل شو. دکارپه جريان کې به که څوك مړشو اويا به يې دکار په کولو کې ناغېړي کوله دامپرا توردپوځيانو لخوا به سمد لاسه مړ ياژوندی په ديوال کې ښخ شو، په دې ترتيب کولای شو چين ديوال دنړۍ تر ټولو لويه هديره وګڼو.

دچين دستر دېوال لوړوالی اوه نيم متره اوسور يې اته متره دی. نوموړی دېوال په حقيقت کې دډېرو څخه جوړ دوومـوازي ديوالونو څخه منځته راغلی، چې منځ يې دتيږو اوکريږو: څخه ډك شوی چې شپږ په آسونو سپاره کولای شي، چې يودبل تر څنګ ددېوال په سرتګ وکړي.

دېوال د (چان هوايي کوان) دمنطقې څخه پيل او لومړني ۵۰۰ کيلو متره يې په غرنيو سيمو کې تېريده. په دې برخه کې کارګران مجبور وو، چې په شا باندې غټې تېږې دغره سرته پورته کړي.

ډيرکارکونکي به دخوړو اوجامودنشتوالي له کبله له منځه تلل. دکارګرانو خپلوان دامپراتور

له وېرې څخه خپلو دوستانو ته دودې اوجامې نه شواې وړاى. يوتاريخ ليکونکی په دې هکله ليکي، «د ۲۰ بوجيو وريجو څخه چې کارګرانوته دهغو دکورونو څخه راتللې ايله يوه به يې دوی ته رسېده.»

تراوسه هم دچين سندرغاړي د ( چين هوانګ ) ددورې په هکله جوړې شوي ترانې وايي :

(( .... دپسرلي په لومړۍ مياشت کې ، دهر کورپه وره کې يو سور څراغ ځوړند دی ...... ټول مېړونه خپلو کورونو ته ستانه دي ....... پرته زما دمېړه څخه چې دستر دېوال جوړولوته تللی دي ....... ))

تاريخي شواهد وايي : کله به چې ددېوال يوه برخه جوړيده د ( چين شي هوانګ ) ديوځونو لوي قوماندان ( منګ تي ين ) به دهغه ځای ته خپل پوځيان لېږل . د دېوال ددوو برجو يا ددوو برجونوتر منځ ۱۶۰۰ متره واټن دی . ددووبرجونو ترمنځ به څليريشت ساعته نهه تنه فوځيانو ګزمه کوله . اودبرجونودننه نهه تنه نور پوځيان به دلیندۍ او غشو سره دجګړې لپاره چمتوناست وو . خينو نورو مورخينو ددېوال دساتونکو ټول شمېر ۹۰۰۰۰ تنه ښودلي دي .

په دې تر تيب ددېوال دجوړېدو کارروان و او دکړ لېچونولړۍ به يې کله کله د غرونو او لوړو غونډيو اوکله به ددښتو او کرنيزو ځمکو اوډول ډول ځايونو څخه تېريده ، کله به په زرګونو متره لوړېده او کله به هم ژورو دروته په سل ګونو مترو راښکته کېده اوکله به هم دسيندونو څخه په تېرېدو دغرونو مزل بيا له سره پيل کيده .

داچې دېوال په څومره موده کې جوړشوی، ځيني تاريخ ليکونکي وايي : هوانګ دېوال د ۱۸ کالو په موده کې پای ته ورساوه . خو ځني نور وايې چې د ( چين شي هوانګ ) تر مړينې وروسته ددېوال دجوړېدو کار دوړپسې امپراتورۍ په وخت کې پای ته ورسېده .

( چين شي هوانګ ) له ميلاده ۲۱۰ کاله وړاندې ومړ . مګر دهغه مړينه هم لکه دهغه دژوندانه په څېر له ډېرو ولولو ډکه وه . ( شيه چي ) دچين نامتو تاريخ ليکونکې ليکي کوم قبر چې امپراتور ( چين شي هوانګ ) ځانته جوړکړي و ، دتېږو او فلزاتو څخه جوړ ددوو دېوالونو اويوې کندې څخه چې د پارې څخه ډکه وه ،تشکيل شوی و . دقبر ګنبذه دآسمان اوستورو منظره ښوده . او دقبر فرش د ( چين شي هوانګ ) دامپراتورۍ دوخت دچين نقشه ښوده . دقبر ګرد چاپېره داسې غشي ځای پر ځای شوي وی چې قبرته دننوتو سره سم دننوتونکي پر مخ راخوشي کېدل .

دچين شي هوانګ تر مړينې وروسته ټول هغه کار ګران چې دهغه دقبر په جوړولو کې يې برخه اخستې وه ، ووژل شوه ترڅودقبر په اسرارو څوك خبر نه شي . دامپراتور ټولې ښځې هم ووژل شوې ترڅو د چينايانو په آند په بله دنيا کې دامپراتور روح ګوښې نه وي .

خوبايد يادونه وکړو چې دچين ستر ديوال خپله دنده په صادقا نه ډول سر ته ورسوله او دچين خاوره يې دڅه دپاسه ۱۴ پيړيو په اوږدوکې ددښمنانو له بريده وژغورله . مګر په ديار لسمه ميلادي پيړۍ کې دچنګيز خان پوځونو اوپه ۱۶۴۴ ميلادي کال کې د ( منچو ) پوځيانو ددیرش کالو جګړو وروسته له دې دېوال څخه واوښتل . نوځکه دا چنايې متل چې وايي : دچين ستر ديوال چې دانسانانو پوره يونسل يې تباه کړ ،سل پاتې نسلونه يې له مرګه وساتل . دحقيقت څخه لرې نه ده .

# خصوصیات انکشاف هیجانی نوجوانان

پوهنیار رازمحمد فیضی

دراین دهٔ نوجوانان تمایل دارد به گفتار وحرکات ناشی ازاحساسات وعواطف طفولیت رایکطرف گذاشته -گفتار وحرکات بزرگان سرمشق قراردهد، ولي دراثرعدم تعادل انکشاف جسمی وهیجانی ورشد عضلات ارگانیزم. نوجوان نمي تواند خودسري خودرا حفظ نماید ومثل بزگان هیجانات خود را تحت کنترول قرار دهد. برای نوجوانان مهم است خودرامطمین وتضمین شده دریابد وبدون تشویش دوره بحراني خودرا به تعقیب بگذارد.

نوجوانان به اثربروز هیجانات شدید دریك جهان پر از تشتت فکري چرت واضطراب بسر میبرد.ودر برابر محرکات بیروبی تعادل خودراازدست میدهد ونمیتواند طورخوب ویا بد مقاومت نماید.

چنانچه این وضع وحالت نوجوان رابه شجاعت وقهرمانی نزدیك میسازد وبعضی این هیجانات تا سرحدي شدت میابند که موجب بروزانتقام وانتحار حتیٰ خودکشی در نوجوانان میگردد.

هیجانات نوجوانان درحال تغیر بوده ثبات واستقرار ندارد. نوجوانان به کم ترین شدت محرکات بیرونی رامي پذیرد وساعات چند ملول وافسرده میباشد وبعد هم باکمترین شدت محرکات بیروني رامی پذیرفته ودوباره باحال اول برمیگردد. بدین صورت گاهی ، گاهی خفه، زیاد مسرور وزیاني تنگدل میباشد .حتی دیده شده است که نوجوان در اوقات مختلف نسبت به یك موضوع دو نوع برخورد خوشبینانه و بد بینانه داشته است. این بخاطرنارامی های دروني است نوجوانان را حالات مختلفه قرار میدهد وموجب بروز عکس العمل هاي مختلفه دربرابر محرکات بیروني میگردد. از همین روست که نصیحت وکمك اکثرا مورد قبول نوجوان قرار نمي گیرد، بلکه صرف زمانی کمك وگفته ها بزرگان مورد قبول نوجوان واقع میشود که راهش درونی خودرا حفظ نموده باشد ونیازمندی هایش تاسرحدي ممکنه مرفوع گردیده باشد.

احساسات وهیجانات شدید نوجوانان تاسرحدی باعث تشدید فعالیت های نوجوان میگردند اما اگر این احساسات وهیجانات بیش ازحد شدید گردند فعالیت نوجوان راضعیف میگرداند .در حالیکه هیجانات بیش ازحدشدیدگردند. فعالیت نوجوان راضعیف میگرداند .درحالیکه هیجانات به انسا نها قوت می بخشدتا فعالیت های راکه در شرایط عادی نمی توانند انجام دهند، به انجام میرساند از همین رو برمسلمان لازم است تا اولا دریافت نمایند که کدام عوامل باعث برخورد هیجاني نوجوان گردیده است وکدام نیازوضرورت نوجوان باقي مانده ودر نتجه نوجوان رامضطرب گردانیده است.

همچنان براي مسلمان ضروری است تانوجوانان را در همه ساحات رهبری ومعاونت نماید وتوجه جدی درهمه امورزندگی نوجوان داشته باشد. معلمان پرابلم های نوجوان راکه در اثر بروز هیجانات شدید بوجودمیاید هیچگاه ازنظردور ساخته متوجه جدی باشدتا هیجانات نوجوان راکنترول نماید ونوجوانان رادوباره تربیت نماید تاهیجانات خودرا هرچه بیشتر ارادی ساخته تنظیم نماید.

دراخرنتیجه گیری میتوان گفت که معلمان میتواندبابرخورد دلسوزانه ثبات هیجانی را در نوجوانان ایجادنماید وانها را بطرف خودشناسي وانکشاف همه جانبه شخصیت حقوق دهند.

# کولرا cholera

سید سمیع الله " سعیدی " دننگرهار دمنځني طب انستیتوت محصل

تعریف : کولرا دیوې حادې اسهالي انتاني نا روغۍ څخه عبارت دي، چې د یو ساعت په موده کې ډېر پر مختللي Dehydration او مړینې سبب کېږي .دایوه خطرناکه ناروغي ده چې په Epidemic ډول خپرېږي اوډېر ژر دمرګ سبب ګرځي، خو په عاجل ډول سره دمایعاتو ورکول او محافظوي تداوي ناروغي دفعه کوي .

<u>Etiology and Epidemiology</u> Vibro cholera دناروغۍ سببي عامل دی.

نوموړې ناروغي دهغو اوبو په واسطه چې د منتن شخص دغایطه موادو په واسطه ناولې شوې وي، انتقالېږي، خو هغه غذایې مواد چې په هوټلونو ، رستورانتونو ،کورونو او بازارونو کې موجود وي اومیکروب په واسطه ناولې شوي وي، هم دناروغۍ دخپرېدو سبب کېږي .

دکولراناروغي حیواني مخزن نه لري او اکثره ماشومان اخته کوي، مګر په ځوانانو کې مهم وقوعات زیات دي.

دا ناروغي زیاتره په Endemic سیمو کې په اوړي او منې کې ډېره زیاته وي او هغه ماشومان چې عمر یې ددوو کالو څخه کم وي، نظر ځوانانو ما شومانو ته لږ اخته کېږي، داځکه نو موړي ماشومان دمور د شیدو څخه Passive Immanity (منفي معافیت) حاصلوي .

د O ګروپ وینه لرونکي خلك د AB ګروپ لرونکو خلکو څخه زیات د کلورا د مرض د خطر لاندې دي ،چې دلیل یې معلوم نه دی.

کلینکي لوحه: ورو سته د ۲۴ او ۴۸ ساعتو د تفریخ ددورې څخه کلورا دفتا په بی درده او اوبلن اسهال باندې پیل کوي او په چټکۍ سره کنټلوي کېږي او کله کله په فوري ډول ډالـــی دویمه ګڼه

سره کانګېهم پیداکېږي په شدیدو پېښو کې د غایطه موادو حجم په ۲۴ ساعتوکې 250m پر 1kg وزن د بدن څخه زیات وي او که چېرې مایعات او الکترولایتونه بیاله سره محافظه شي، نو hypovalimic Shock اود مرګ سبب کېږي تبه معمولا موجوده وي، عضلي Cramp ډوله دردونه د لکترولایتونو د تشوش له کبله مینځ ته راځي، د criosss له نظره د غایطه مواد اوبلن. خاکي رنګه او لږ خیره وي او کله کله نقطوي مخاط لري، وینه نه لري. دردونه موجود نه وي او که وي هم، ډیر کم وي، غایطه مواد بوی نه لري اود وریجو د اوبو په شان وي، نو له دې کبله ورته Rice Water لقب ورکړل شوی دی.

کلینکي لوحه د مایعانو د ضایع کېدو پورې اړه لري د و جود نارمل وضعه له دریو څخه تر پنځو پورې کمېږي او تنده مینځ ته راوړي او د ۵ نه تر ۸ فیصده وزن سره hypotention بې اشتها يي، اود نبض لوړوالی مینځ ته راوړي.

د ۱۰% ضایعاتوسره oligaria دمیتیازو کمېدل ، ضعیف والي ، دنبض معدومېدل sunken ege یعنې ننوتلې ستر ګې sunke fontinal او coma مینځ ته راځي.

## دکولرا اختلاطات یا complication of cholera:

دکولراخطلا تات دمایعاتو دضایع کېدو له کبله مینځ ته راځي ، shock دپښتورګو عدم کفایه tab ternecrosis له کبله منځ ته راځي اماکه ناروغ ته په کافي اندازه مایعات ورکړل شي ، نو داختلاطا تو دمینځ ته راتلو مخنیوی کوي .

**Diagnosis** یاتشخیص:

دکولرا دناروغۍ تشخیص دناروغۍ کلنیکي لوحې دوریجوداوبو په شان اسهال ، دوینې دمایعاتو Hct لوړوالی، دغایطه موادو دمعاینې vibro cholara موجودیت او همدارنګه دغایطه موادو دکلچر په واسطه تشخیص کېږي .

**Treatment** یا تداوي:

کولرا په اسانۍ سره تداوی کېږي چې عاجل الکترو لایتونه او مایعات باید معاوضه شي ،دمایعاتو اندازه 1% څخه کمه ده Dyhysration درجه دناروغ دځېږې، نبض ، دوینې فشار اودپو ستکي دغونجوالي یا tugor په واسطه تعینېږي، وریدي مایعات دکانګو په حالت کې اودناروغۍ په شدیدو حالاتوکې توصیه کیږي.

دیولوی قطر لرونکی ستن په لویو وریدونو کې لکه فخري ورید کې داخلیږي اومایعات په دومره سرعت سره ورکول کیږي، تر څو فشار اونبض پیداشي اووروسته پاتې مواد په کرار کرار ورکول کیږي که چیرې داخل الوریدي مایعاتوته سامان په لاس کې نه وي، مایعات د Ngt له لارې تطبیق کیږي کله چې دناروغ کانګې ودریدې، ناروغ باید مجبور کړل شي چې په هر ساعت کې 500leter مایعات وڅښي دضرورت وړ مایعاتو محاسبه د هر 8 ساعته ادرار ، غایطه مواد ،کانګو اوغیر مخصوصو لارو څخه محاسبه کیږي.

ناروغ ته باید داخل الوریدي مایعاتو په صورت کې ringer lectet څخه استفاده وشي اوداخل الوریدي مایعاتو سره یوځای د ۲ څخه تر ۴ gr پوتاشیم کلوراید یاپوتاشیم ستریټ دورځې ذدرې یاڅلور ځلی ورکول کیږي دمایعاتو دنشتوالي په صورت کې iso tonic salin ورکول کیږي مګر په هرو دوه لیترو کې دیولیتر iso tonic salin یا B corbonet سره بدل شي او potassium باید علاوه شي دخولی دلارې په تداوی کې ګلوکوز اودوریجو وړه هم باید یوځای شي ترڅو دالکترولایتونو جذب سریع شي chlor promaizn دکانګو په خاطر aomg هر شپږ ساعته ورسته ورکول کیږي چې دا حالت دکولمو secretion یا " ښویوالی " اودمایعاتو ضایع کموي.

په ماشومانو ، زړو،کم خونه او هغو خلکو کې چې دزړه ناروغي ولري، دمایعاتو سریع اصلاح pulmonary edema دسږو پړسوب دمینځ ته راتلو سبب کیداي شي د مایعاتو بیلانس ځانګړې پاملرنه غواړي، چې په دې کې مهم انتخابي مایع Ringer Lactate دی که چیرې د مایعاتو په ورکولو سره د ناروغ وضعه خرابه وي نو په کتلوي ډول ګلوکوز ۲۵% څلور ملي لیتره په فې کیلو ګرام Glucoses 25% 4ml kg وزن د بدن په تعقیبي ډول ورکول کیږي په ورځنی تداوی کې باید Tetracycline هر شپږ ساعته وروسته دورځی (250 mg) او دوز یي یو تابلیت Cotriexazole د Vibro Cholera دمیا ئې اطراح دوام کموي د Pregnancy په صورت کې هغه دواګانې باید توصیه نه شي چې جنین باندي بد تاثیر لري.

وقایه: یا **(Prevention)**

حفظ الصحه باید مراعات شي اوبه باید دیو پاکې منبع څخه وڅښل شي، عادي اوبه باید وجوشول شي، غذایي مواد باید دمچانو او نورو انتاناتو څخه وساتل شي، لوښي باید په معقم ډول تعقیم شي، تر څو د ناروغی دخپریدو څخه مخنیوی وشي.

# د افغانانو ستونزې

عمرا خان (منيب)

دابه ښايي ټولو ته جوته وي چې، زمونږ هېوادوال د راز راز ستونزو سره مخ د، په ځانګړې ډول د تېرو څه له پاسه دوو لسيزو جنګ جګړو او په هېواد کې سياسي بې ثباتۍ د عادي افغانانو کړاوونه دومره زيات کړل چې اټکل کول يې ګران کار دی.

که په ټولنيز ډول وغواړو چې د خپلو هېوادوالو کړاوونه او ستونزې په بشپړ ډول معلومې کړو، نو په يقيني توګه يوې هر اړخيزې سروې ته اړتيا پيداکېږي، خو څرنګه چې په دې اړه کومه هر اړخيزه سروې نه ده شوې، نو له همدې کبله زه په خپله ليکنه کې دهېواد والو هغو ستونزو ته اشاره کول غواړم چې په ورځني ژوندکې ورسره زمونږ زيات شمير هېواد وال مخ دي او مونږ يې وينو او يايې د باوري سر چينو څخه اورو.

که په ژوره توګه د خپلو وطنوالو په کړاوونو فکر وکړو او ښه ورته ځير شو نو په اوس وخت کې دغه اساسي ستونزې موجودې دي، بايد يادونه وکړم، چې د افغانانو ټولې ستونزې په دې لنډ مطلب کې نه شي رانغښتل کېداي او ښايي نورې زياتې ټولنيزې ، سياسي ، اقتصادي او صحي ستونزې به وي خو دلته زه يوازې هغو بنيادي اسانتياو ته ګوته نيول غواړم چې دنيمګړتيا او يا نه موجوديت له کبله يې افغانانو ته بې شمېره کړاونه پيداکړي دي.

١. روغتيايي ستونزې
٢. ښوونيزې او روزنيزې ستونزې
٣. اقتصادي ستونزې

١. روغتيايي ستونزې:

الف روغتيايي ستونزې: لکه چې مخکې يادونه و شوه، جنګ او جګړو د هېواد ټول صحي سېستم ويجاړ کړی او د بيا رغونې لپاره يې چټک ګامونه نه دي اخيستل شوي.

دېيلګې په توګه د افغانستان ٨٠% خلك په کليو او بانډو کې ژوند کوي، خو له بده مرغه په زياتو کليوالو سيمو کې صحي کلينکونه نه شته او نه هم مسلکي ډاکټران

که چېرې په کوم کلي کې د روغتيا ډاکټر هم پيداشي، نو بيا هلته دارو درمل او سامان الات چې په صحي چارو کې تر ې کار اخيستل کېږي، نه وي موجود.

بر سېره پردې يو شمېر کليو او بانډو ته د حمل ونقل د وسايلو تګ راتګ نا شونی دی او کله چې هلته ناروغ پيداکېږي، نو دجنازې او يا د حيواناتو څخه په ګټه اخيستنې سره يو او يا دوه ورځې په پښو مزل کوي تر څو ناروغ کوم صحي کلينك او يا د ولايت روغتو ن ته ورسوي په داسي حال کې چې زيات شمېر ناروغان يا خو په نيمه لار کې خپل ژوند له لاسه ورکوي او يا روغتون ته تر رسېدو پورې يې صحي حالت ډېر زيات خراب شوی وي په ځينو وختونو کې بيا پېښور او نورو ځايو نو ته د انتقال اړتيا پيداکيږي.

ب. دفعال صحي سېستم او اړونده دارو درملو د نشتوالي له کبله په ځا نګړي توګه زيات شمېر افغاني ماشومان او مېندې دجدي خطر سره مخ کېږي او يا هم د پوليو ويروس او نو رو په وسيله دايمي معيو بيتونه پيدا کېږي.

همدغه راز د ناوړه پېښو او زياتو کړاوونو له کبله يو شمېر افغانانو ته روحي او عصبي ستونزي پيداشوي. چې له دغو ډول ناروغانو لپاره نه اوس ددرملني مرکزونه شته اونه هم د تفريح ځايونه اوو سايل، چې ناروغان ورته دتداوۍ لپاره مراجعه وکړي.

## ۲. ښوونيزې او روزنيزې ستونزې:

دتېرو ۲۳ کلونو پرمهال په افغانستان کې سياسي بې ثباتي او وران ويجاړ اقتصادي حالت ددې سبب شوی، چې دهېواد روزنيز سېستم ګډ وډ کړي.

که څه هم په دې اخرو وختو نو کې د افغانستان موقت حکومت په دې اړه يو لړ مثبت ګامونه پورته کړي، خرنګه چې دهېواد اقتصاد ډېر کمزوری دی او بې له بهرنيو بې قيده اوبې شرطه مرستو لکه چې لاژمه وي، هغسې شونې نه ده او ښايي د مالي امکاناتو دنه موجوديت او يا کمښت په صورت کې د ښوونې او روزنې سيستم بيا جوړول ډېر زيات وخت نيسي، چې بې له شکه دغه ځنډ به ډېر افغاني ماشومان له زده کړې بې برخې کړي او د زده کړې مناسب وخت به يې په هغه او دغه تېر شي.

## ۳. اقتصادي ستونزې:

لکه چې ټولو ته جوته ده ديوې ټولنې لپاره ښه اقتصاد د ملا دتير حيثيت لري او دنه مو جوديت په صورت کې يې نه يوازې داچې ټولنه د رار راز ستونزو سره مخ کېږي، بلکې د کار انر ژي چې د ټولنې په غړو کې مو جوده وي. ضايع کېږي او په پای کې ټولنه د پرمختګ پړاوونه نه شي وهلی، په اوس وخت کې زيات شمېر هېوادوال مناسب مصروفيتونه نه لري. چې له دغې لارې دخپلو کورنيو ورځنۍ اړتياوې پوره کړي.

د ټو لنې دځوان قشر بې کاري نه يوازې داچې پخپله دټولنې په اقتصادي ، سياسي او ټولنيزوپر مختګونو په لار کې يو لوی خنډ ګڼل کېږي ، بلکې ټولنيز فشارونه هم دځوانانو او د کار وړ وګړو لپاره دسالمو مصروفيتو نو دنشتوالي له کبله پېداکېږي او ځوانان مخدره موادو ته مخه کوي، چې په پای کې د ټولنې لپاره دزياتو ټولنيزو او صحي ستونزو د پيداکيدو سبب ګرځي.

همدا راز ۵ کلنې وچکالۍ چې اوس هم دوام لري، د هېواد په اقتصاد ډېره ناوړه اغېزه کړې ، د کښت وړ ځمکې په شړو بدلې شوي اود هېواد بزګران يې له ډول ډول ستونزوسره مخ کړل. پر دې برسيره يو زيات شمېر هېوادوال په ګاونډيو اونورو اروپايي هيوادونو کې د وطن نه ليرې شپې ورځې سبا کوي. چې بېرته راستنېدل او پخپل وطن کې ورته د ژونه کولو اسانتياوې برابرول يو ه ډيره لويه ستونزه ده، چې افغانان ورسره مخ دي، خو له بده مرغه دغه افغانان چې په بهرنيو هېوادو کې ژوند کوي، نه يوازې داچې حقو قو ته يې پاملرنه نه کېږي، بلکې يو په بل پسې ځپل کېږي او ځورولو نه يې هېڅوك نه خپل او نه هم د بل لاس نيسي.

# په خندا کې پندونه

## دحکمت رالیږنه

زه یې میړه یم :

په یوې ودانۍ کې یو کرایه اوسیدونکي دودانۍ خاوند ته ورغی او ورته یې وویل :

صاحبه: په درېم پوړ کې یوه ښځه ده، چې هره ورځ دخپل مېړه سره په جګړه وي اوله دې امله ټول ګاونډیان ډېر په تکلیف دي، که ته دودانۍ دخاوندپه توګه هغه ښځه پوه کړې، چې نور دخپل میړه سره جنګ اوجګړې ونه کړي ،ډیره به ښه وي .

دودانۍ خاوندوویل :داسې ښکاري ته یې ګاونډي یې؟

سړي وویل :نه صاحبه زه یې میړه یم .

باورنه کول:

یوځوان یوې پېغلې ته وویل :ګرانې پر تامین یم .

پېغلې وویل: باور مې نه کېږي.

ځوان وویل : ولې ؟

پېغلې وویل: ځکه چې مین لیوني وي اودلیونیانو په خبروباور نه دی پکار .

سراوجیب :

یوکبر جن بډای غوښتل چې په ملا نصرالدین باندې ملنډې وکړي، نویې ورته وویل : ایا زمااوستا تر منځ کوم ورته والي شته؟

ملانصرالدین ورته وویل : هوصاحب زمااوستا دوه شیان سره ورته دي.

بډای وویل: کوم کوم شیان؟

ملاوویل یوزماجیب اوستاسر چې دواړه تش دي ،بل زماسر اوستاجیب چې دواړه ډک دي.

دخوب راوړلو دا رو:

یوې ښځې خپل خاوند له خوبه راویښ کړ.

خاوندیې وویل : څه خبره پېښه ده؟

ښځې وویل : هېڅ نه دي پېښ، غوښتل مې چې دخوب راوړلو دارو دې در کړم.

شکایت:

دوو ورونو له درس او ښوونکي څخه شکایت کاوه.

یوه وویل : څنګه به ښه وي چې زمونږ ښوونکي مړ شي او مونږ ترې خلاص شو.

بل وویل : دښوونکي مړینه مونږ ته هېڅ ګټه نه لري، ځکه که هغه مړ شي، نو پلار به مو بل ښوونکي ته وسپاري . ښه به داوي چې زمونږ پلار مړ شي او مونږ ترې له یوې مخې خلاص شو.

# د توکیو د ډالرې مرستو خوږبويي

محمد اصف صمیم

د روان عیسوي کال په سر کې چې په توکیو کې د نړۍ ګڼو هېوادو د افغانستان په هر اړخیزه بیا رغونه کې د برخې اخیستو په دود د څلورنیم ملیارده ډالرو مرستې اعلان وکړ، دې ناورین د درویشت کلن ناورین ځپلیو افغانانو په زړونو د ډاډ او بې کچه خوښۍ ډبوې بلې کړې او په دغو مرستو یې یوازې د همدغو مرستندیو هېوادو مننه ونه کړه؛ بلکې د هغو په هڅونه او ژمنه اخېستو کې یې د لنډمهالي اداري د ځوان مشر ښاغلي حامد کرزي د هڅو او منډو ترړو ستاینه هم وکړه.

افغانانو ددغو مرستو داعلان په اورېدو په خوښۍ څرګندونه ځکه ګرم نه وو، چې هیوادیې له دې څه کم دوه نیمو لسیزوراهېسې په لمبوکې ولاړ دی،څه خپلو وریت کړ اوڅه پردیو دخپلوۍ په جامه لوغ لېږ کړ. دخوارلس کلنو سربښندنو اوشهادتونو په پای کې یې چې کوم بري په برخه شو، هغوهم نسکورې پایلې اونوي نهیلۍ راوړې. دجهادي پیرښاماران هم پرطبیعي اوسیاسي زیرمو او خزانو داسې منجیله شول، چې له سره یې ځانونه ددغه اتل اولس هغه مشران اوبا مېړان نه ګڼل، چې تریرونه یې همدغه میړه ولس په اتلولیو ځانونه ددربار مشران کړي وو.

ګاونډیو هم نور خوبونه ولیدل، نړۍ هم دخپل غرض د(لال) ترخپلولو وروسته، خپلې هغه ژمنې هېرې کړې،چې په افغانستان کې دسرو لښکرو دشتون پر وخت یې وخت پروخت غبرګولې. وروستي پنځه کلن پیرهم ځکه په نشت شمیر و، چې افغانانو ته دمنځنیو پېړیو دانځور ګر نظام دزغم جزا ورکول کېده، خپلې کورنۍ اوهېوانۍ زیرمې اوسرچینې یې وچې وې. له نړۍ سره یې اړیکې دانزوا په مزبوتو سیاسي اوداقتصادي مرغلینو مزیو تینګ کړي وو..

نوچې دغسې زار ځپلیو، نتلیو،اسکېرلیو او اړو افغانانو دنوکیو دغونډې څلورنیم ملیارده ډالروداعلان ډول ته اتڼ نه اچاوه :نوڅه به یې کول؟

دنړیوالو مرستندویو دې هم کورودان
وي ،مرستوته یې دنکاح شرطونه ایښي وو.سوله
به ټینګېږي ،دیموکرات او براخبنسټه نظام به
جوړېږي ،دمرستود پرځای لګونې ډاډ اوتضمین
به ورکول کیږي او.........

دا ټول شرطونه هماغه هیلې وې،چې دترسره
کولو لپاره یې دغه موعودې مرستې پکار
وې.ځکه سوله همغه مهال راتلای شوه یا راتلای
شي ،چې پرټولنه باندې د ځګړه هڅوونکي شرایط
واکمن نه وي ، یانې دټولنې ګړیز اوبشري ځواک
اوانرژي دمشروع اوګټورو موخو دترلاسه کولو
لپاره ولګېږي، ښوونه روزنه هغه مهال دودیدای
شي، چې دزده کړې ور کوچنیانودودې د
استعدادونو اوورتیا دغوړېداپه هیله ښونځیوته
مخه کړي .دټولنې ځوان کول دخپلو ملي ژمنو له
مخې دهیواد په ملي دفاع کې خپله ځواني
خاوري کړي . روښاندي دخپل ملي سیاست
دلاغیزمنتوب په سوچ کې شي ،

خوله بده مرغه اوپه ډېري خواشینۍ سره باید
وواو ،چې زمونږ دټولنې خپلې مادي او معنوي
سرچینې دهېواد ودانۍ پرځای پرهیواد ورانونه
لګېږي ، دزده کړې انرژي مویاپه کوڅوکې
لـــګېږي یـــا ښارونوتــــه پرنویوورغلیـــو
فسـادخپرونکیو مرکزونوکې اویاهم دمنفي
سوچونو په روزنه کې. ځوان کول مودملي سالمې
روزنې په ډاډ دملي سوچ اوملي دفاع داحساس
پر ځای‌دجنګوونکیو ښاغلیو دجګړې د ماشین
تېل برابروي اوهمداهغه ستره او د اندېښنې وړ
چار ده، چې زموږ دغې لړ تر لړ نیم لسیز ناورین

ته یې لار اواره کړې ده. زه په دې باب خپله یوه
ژوندۍ خاطره د بېلګې په توګه وړاندې کول له
موضوع نه بهر نه ګڼم او هغه دا چې:

کال دوه وړاندې راسره یوه دوه ځوانان
په موټر کې ناست وو، یوه له بله د نه ښکارېدو
پوښتنه وکړه، هغه ورته وویل:

زه خو والله یوه میاشت د طالبانو په
مورچو کې وجنګېدم؛ خو د هغوی تنخوا لږه وه،
پرې مې ښودې؛ دا درې میاشتې کېږي، د مسعود
په جبهو کې جنګېږم، دلته ښه ده ، تنخوا ډېره ده.

اوس نو سړی بې له شکه ویلای شي،
چې زموږ د دغه درویشت کلنې جګړې روان ماشین
یوازې له همدې امله چالان دی، چې ځوانان مو د
کار او هېواد سمسورونې ارزښتناک وخت یوازې په
هېواد ورانونه او وینې تویونه لګوي او بس او لاهم
له بده مرغه دا ده دا غمونکې او غملړلې لړۍ نه
یوازې و نه شلېده، بلکې ورځ تر ورځې د نالیدلیو
خواوو له خوا پیاوړې کېږي.

خبره مو د توکیو د مرستو کوله، چې
ایا هغه په ډېر شور وزوږ او هیله منۍ بدرګه
شوې مرستې په دې څه کم یو کال کې راغلې او
که راغلې وي، نو څوک دې ووایي، چې بې له
دې چې د دې مرستو ورمو او خوږ بویی یې د
بېوزلي اولس ژوندنیو اړتیاوو ته د نرخونو په
ډالري کولو د دوی ژوند نور هم تریخ نه کړ؟ ایا د
ښارونو ( په تېره د کابل ښار ) په بېوزلیو او
خوارو استوګنو کې د خپلو نړېدلو او کنډوالـه
شویو جونګړو د دودانولو ځواک ځواک او مټره
پیدا شوه؟ ایا ددغو وعده کړیو مرستو په بوی

زموږ د خوار او نتلي اولس بېکارۍ ځپلي دماغونه تاند شول؟ ایا دهېواد ملي اقتصاد د بیا رغونې په هیله په دې تېر یوه کال کې د هېواد د مواصلاتي لیکو پر پیوندولو او رغونې کوم غیران ولګېد؟ ایا د دغو ژمنو او وعده کړیو مرستو نوي سلنه ۹۰٪ د دوی د خپلو نازولیو مؤسسو په ډول او نازولیو شاه خرخیو اوهغه ماډل موټرو نه لګېږي، چې بې له همدې نازولیو به پرې د چا لاس هم نه وي لګېدلی.

ایا د بشري خدمت احساس په همدې پیاوړی کېږي، چې د دې خوارې ټولنې له ژوندکچ په سل برابره لوړ ژوند تېر شي او پخپلو دغو ځورونکیو هوسونو د افغاني ټولنې د طبقاتي توپیرونو کچ نور هم پسې لوړ کړي؟

ابا دغه مرستې د همدې لپاره وې، چې زموږ متمدنه ټولنه کې ښځې دسینګار او ځانښودنې په چل نه پوهېدې؛ نو ځکه ورته د سینګار ښودنې د کورسونو په جوړولو باید مرسته وشي.

نړیوالې ټولنیزې رسنۍ کله کله دمرستندویو هېوادونو د دغو مرستو په باب دا بخۍ هم پکې وکړي، چې له دغو ځلورنیم میلیاردي مرستې څخه تر اوسه د افغانستان منځمهالي اسلامي دولت ( په مختلفو روایاتو شپږ سوه، اته سوه او دولس سوه مېلیونه ډالره تر لاسه کړي دي. دغو پر له پسې کښونکیو رارسېدلیو مرستو اخر حامد کرزی وپاراوه او اړ یې کړ، چې ووایي:

افغانستان لنډمهالي اسلامي دولت تر اوسه له دغو مرستو څنې یو ډالر هم نه دی تر لاسه کړی. او که څه راغلي هم وي؛ نو دا به دغو ښاغلیو پر خپلو ډولونو او ځانښودنې لګولي وي.

زما د یوه ملي دوست وینا ده،چې د افغانستان توبه به خدای هله قبلوي، چې دغه وعده کړي خلورنیم ملیارده ډالر تمام شي، ځکه بیا به نو دغه راغلي ښاغلي مرستندویان ووایي. چې نور نو دلته ( په افغانستان کې ) دومره څه نشته؛ چې موږ پرې مزې چړچې وکړو نود خدای پامان.

زه د دغو شهخرڅیو په باب یوه بله خاطره هم بېلګه کوم او هغه دا چې: په پېښور کې په یوه غونډه کې زموږ یوه رسمي دپلومات وویل، چې ما د ملګریو ملتو له یوه ژمن مقام نه افغانستان ته د نور سوله ساتي ځواك د رالېږنې غوښتنه وکړه؛ هغه راته وویل؛ چې له تاسې سره خو روسي عسکرو په وچه ډوډۍ شپې سبا کړې دي. تاسې داسې انګېرئ چې د نورې نړۍ پوځیان به هم دلته په هماغومره سادګۍ او ارزانۍ شپې سبا کړي؛ له موږ نه خو خپل عسکر په مورچه کې درې وخته کوچ، پنېر، مربا او ډبل ډوډۍ، درې ډوله غوښه، مېوه او خښاك غواړي، زه د دغسې عسکرو شمېر نور زیاتولای نه شم.

خبره اوس داده، چې افغانستان خو نه خلیج دی او نه اسراییل، چې د دغو ښاغلیو نړیوالو لپاره په دومره تاوان وارزي. نو چې نه ارزي؛ نو بیا د دغو لسګونو هېوادو ځواکونه له افغانانو د توکیو د مرستو پرته نور په څه بسیا کېږي؟

# ليو تولستوى او الكسي تولوستوى

پوهيالى سيد غني (غني)

د پخواني شوروي اتحاد د ادب په تاريخ كې دوه كسه د تولستوى په نامه تېر شوي دي، چې يو يې

ليو تولستوى (١٨٢٨ - ١٩١٠) او بل يې الكسي تولستوى (١٨٨٣ - ١٩٤٥) دى، چې دا دواړه

د داسې اثارو ليكونكي دي، چې د نړيوالو له خوا يې ډېره ستاينه شوې او هر يو شاهكار ګڼل شوى دى، ياني دواړه يې د نړيوال شهرت خاوندان دي ،خو كله چې زموږ ليكوالان له دوى څخه د

يوه يادونه كوي. يا يې د اثارو په هكله څه وايي، نو يوازې يې د نوم (تولستوى) په راوړلو بسنه

كوي، چې دا نوم په دواړو پورې اړه لري، همد لته ده چې لوستونكو ته شك او اشتباه پېښېږي.

بنايي ددوى او د اثارو په پېژندنه كې يې لږتر لږه بايد تو پير وشي، چې له يوې خوا د يوه اثار اوكارنامې په بل پورې ونه تړل شي او له بلې خوا د لوستونكودشك او اشتباه مخه نيول شوې وي.

دهمدې موخې پر بنسټ مې لازمه وګڼله، چې ګرانولوستونكواوداد ب مينه والوته هريو په لنډډول ورو پېژنم:

ليوتولستوى تولســــــــتويكونتليونيكولايويچ

Tolstoi-countleo nikolae vich))

(1910-1828)

دروس نو ميالى ليكوال فيلسوف اوټولنيزمصلح دى چې په (١٨٢٨ ع) كال كې دتولا (Tula) دولايت دياستا ياپوليا نا (Yasnapolyana) په سيمه كې زېږېدلى دى د ((ګازان)) په پوهنتون كې يې زده كړه كړې او په (١٨٤٧ ع) كال كې له پو هنځي څخه فا رغ شوى دى.

په اتلس كلنۍ كې يې له مطالعې سره ډېره مينه پيدا شوه ددوو فرانسوي ليكوالو (ولتر) او (روسو) اثار يې مطالعه كړل. كه څه هم ليو تو لستوي يو مذ هبي سړي و، خو په (١٩) كلنۍ كې له كليسا ووت اوله مسيحيت سره بې علاقې شو. په (١٨٥١) كال كې دروسيې په پوځ كې داخل شواو قفقازته لاړ. په (١٨٥٥) كال كې يې د سيواستوپول دښارپه اتلواله ساتنه كې برخه درلودله. په دې دوره كې يې يو شمير كتابونه لكه ((ماشومتوب، نوي ځواني اوځواني)) او((دسيواستوپول كيسې)) چې ځينې دده دخپلو حالاتو بيانونكي دي او ځينې يې فلسفي اړخ لري، وليكل.

دسيواستوپول كيسو كې ددغوجګړو واقعي منظرې په ښه ډول څرګندې كړي، چې دده شهرت مهم لامل يې ګڼلى شو.ددې

کیسو په یوه کیسه کې یې لیکلي دي: ((زما دکیسي اتل،چي دزړه له کو مې راتـه ګران دی اوزیار مي ایستلی دی، چې دهرارخیزې ښکلا ستا ینه یې وکړم،ریښتونولي ده چي تل به په تېره،اوسنۍ او را تلونکې زمانه کې مو جوده وي.))

په (۱۸۵۷ع) کال کې یې له پو ځي خد مت څخه استعفاکړه اود اروپا مختلفو هیوادونو ته یې سفرونه وکړل. خودلوېدیځ د پیسه دوست تمدن له لیدلوخوا شیني شو او کله چې بېر ته خپل هېواد ته را ستون شو، نو په خپله سیمه کې یې په خپلو ځمکو اوسیدل غوره وبلل او همد لته یې د بزګرود زامنو دروزلو لپاره یو ښوونځی هم جوړکړ.

لیو تو لستوی په (۱۸۶۲ع) کال کې واده وکړ او په (۱۸۶۶ ع) کال کې یې خپل ستر رومان ــ ((سوله او جګړه)) چې په ۱۹ پیړۍ کې دروسې د تا ریخ او ټو لنیزو اصولو په هکله پرا خې څر ګندونې لري، ولیکه. بل ډېر ستر کتاب یې ((انا کاري نین)) نو مېږي.

دلیو تو لستوي د انتقا دي ریا لیزم زوریـه ځا نګړي ځوا ك سره د ((پا څون))په رومان کې، چې په (۱۸۹۹ ع) کال کې یې لیکلي او په هغې کې یې دهغه مهال ددولت دستګاه ،کلیسا ، ټولنیز سیستم او اقتصا دی او ضا ع تر انتقا د لاندی نیولي او په کلکه یې ټکولي دي، ښه څرګند شوي دي.

نوموړي دا د بیا تو په نورو ژانرونوهم لیکنې کړي دي،چي هر یو یې نړیوال شهکار ګڼل کیږي. د بیلګې په ډول په لنډو کیسوکې یې((دایوان ایلیچ مړینه))، ((دکریزرسندره)) او نور.

همدا رنګه یې دډرامې په برخه کې ((دتور تمو واکمني))، ((ژوندی کا لبوت))او نور دیادولو وړدي.

دورځپا نې لیکلو په ډګر کې یې هم په لوړه کچه ډېر څه کړي دي. د اعدام دله منځه وړلو او د تزاري روسیي دولت د تېریو په هکله ډېرې لیکنې کړي دي، چې په خپل وخت یې خورا ښه اغېزه هم درلوده.

د((انا کاري نین)) تر لیکلو وروسته ورځ په ورځ د مذ هب خواته مایل کېده.دانجیل په لوستنه یې پیل وکړاو په مسیحیت کې یې دیو نوي تعبیر بنسټ کېښود،چې اساس یې دتشدد له لارې مقا بله نه کول واو دده دغې ګروهې دهند د شلمې پېړۍ دمشر مها تماګاندي دعدم تشددله ګروهوسره پوره ورته والي درلود.

لیو تولستوی برسېره پر دې چې خپله نوې ګروهه یې په یو لړ فلسفي او مذهبي کتا بو او رسا لو کې خپره کړه، داسي هوډیې هم وکړ چې خپله ټوله شتمني به خلکوته پرېږدي او خپله به د یو بزګر په څېر ژوند کوي ،خو ښځه یې په دې کار راضي نه وه، ځکه دی اړ شو چې حپله ټوله شتمني دخپلې میر منې په نامه کړي. له دې کاره وروسته لیوتولستوی دتجرد او انزوا د پلټنې پسې،چې دده وروستۍ موخه وه، مخه کړه او په پاي کې داورګاډي په یوه کوچني تم ځای کې د تبې( سینې) په ناروغۍ مړ شو.

## الکسي تولستوي:

الکسي تولستوی هم دروسيې نومیا لی لیکوال دی، چي په (۱۸۸۳ع) کې د (والګا ) دسیند په غاړه د((نیلایفسك)) دکوچني ښارپه یوه بډایه کورنۍ کې زېږېدلی دی. وروسته له هغې چي مسلکي ښوونځي یې پای ته ورساوه. د ((پتر بورګ)) د تکنالوژۍ په انستیتیوت کې شامل اوپه درس ویلو یې پیل وکړ.

دالکسي تولستوی د ژوند لومړني پړا ونه ب داسې چاپېریال کې تېر شوي دي. چې ور وست

# د نوشېروان لیکونه

هغه وخت چې دهېواد دمشرانو څخه دیوه لېك نوشیروان ته ورسېد، پکې یې لېکلي و: په دې ښار کې دیوه سوداګر خزانه د پاچا له خزانې څخه ډېره ده. نوشیروان دلیك پر شا ولیکل: داچې شاهي ګدۍ اوحکومت زمونږ اوپه مونږ پوري اړه لري، که دهغه مال او پیسې هر څومره ډېرې وي، مونږته یې تاوان نشته. کله چې ددفتر یوملګري ورته ولیکل: په دې ښارکې دوه سوداګران اوسېږي، چې ګاونډیان یې دعیش ونوش اوسازوسرود له امله دشپې خوب نه لري. نوشیروان یې په ځواب کې لیك واستاوه چې: له دوې پرته که دهر چا لاس رسېږي اوتوان یې ولري، خوبل ته یې تاوان اوضررنه وي، خپل وخت دې په خوشحالۍ تېر کړي. بل ورته لیك واستاوه اودایې پکې لېکلي وه: په پاچاهي خزانه کې هېڅ نه دي پاتې، څه چې وه ټول تاسې وتښتول. خو په ځواب کې یې ورته ولیکل: زمونږ عیب هغه وخت دی چې خزانه مستحقینو ته دهغود حقوقو له ورکولو وساتو. یوچاورته داهم لیکلي و: پاچادلږ شمېر ساتونکو سره تګ راتګ کوي چې له احتیاطه لرې ده. نه چې دښمنان یې دکومې درغلۍ فکر وکړي اوپاچاته کوم زیان ورسوي. نوشیروان دلیك په واسطه ځواب ورکړی و: دپاچاهانو ساتونکي دهغو نیاو وي.

حمید مومند

# صنم

دا مې لاس راکښېښ صنم په سر دپاسه
که و زمکې ته راکوز شو لمر دپاسه

سپک سپک غر د یار د مینې هسې دروند دی
لکه ایښې په سینه وي غر دپاسه

لا یې زه له پیمختوبه چور چور ناست یم
بیا یې که راباندې خط لښکر د پاسه

څو بې عقله لېونی نه شې په عشق کې
بل هنر نشته تر دې هنر د پاسه

په یو هسې مغرور حسن مبتلا شوم
چې لرې تر لمر سپوږمۍ نظر د پاسه

د مغرب له لوري لمر وخوت قیامت شو
که راځې په کبر و ناز دلبر د پاسه

چې نمرۍ د پاسلونې خورې حمیده!
په یوه پرهر ږدې بل پرهر د پاسه

# ډیوه

حمزه بابا

ژاړې چې بلبل فاني بهار لره کنه
خاندې چې ګلونه موسیقار لره کنه

جمع په خوږو نښتو د یار مه شه زړګیه
ته چې شوې پیدا خو انتشار لره کنه

شمع هره شپه وایي یو راز چې خاندې ژاړې
روڼ چې د چا زړه وي ښایي دار لره کنه

ستا د نظر ستنې مې ساتلې دي په زړه کې
تار د زلفو هم ښه وي پرهار لره کنه

زار دې شم له سترګو که نظر مې کم شي خیر دی
ته خو التفات په ما بسیار لره کنه

نور ښایست یې څه کوې، خو خال یې نمونه ده
بس ده دا یوه دانه خروار لره کنه

پس د خاموشۍ نه دې انکار وکړ، موسکۍ شوې
خدایږو نېت دې کړی و اقرار لره کنه

دلته حمزه هر یو جنس تیاره دی بې له عشقه
تا ډیوه راوړې وه بازار لره کنه

# ګیله

## درویش دراني

له شونډو نه وه، له بڼو او له رخساره نه وه
زما ګیله له خپله بخت وه له یاره نه وه

❀❀❀❀❀❀

ستا په تندي کې به مې خپله څهره وکتله
په کومه ورځ چې به له ما سره هینداره نه وه

❀❀❀❀❀❀

دا رنګه شپه وه چې په سر باندې مو ستوري نه وو
داسې منزل و چې تر پښو لاندې مو لاره نه وه

❀❀❀❀❀❀

زه چې تر تا پورې درتلم رقیب و نه لیدمه
په دغه لار کې بلا وه، مګر بیداره نه وه

❀❀❀❀❀❀

یوو په قبرونو کې راغلي تر دې ځایه پورې
درویشه دا خل د وطن مځکه هواره نه وه

❀❀❀❀❀❀

*خوشال بابا*



زه خو شرابي یم، شیخه ته راسره جنګ کړې
برخې ازلي دي، کاشکې ما د ځان په رنګ کړې

❀❀❀❀❀❀

لاړل و جنت ته چې په پوهه خبر نه وو
لاړل و دوزخ ته چې یې لاڼې د فرهنګ کړې

❀❀❀❀❀❀

پند د محمد د ابو جهل پکار نه شه
څوك به یې صیقل کا چې یې خدای آینې زنګ کړې

❀❀❀❀❀❀

کېنې په خلوت کې شیخه سود یې را ته وایې
ولې په خپل ځان دا هسې ارت جهان تنګ کړې

❀❀❀❀❀❀

زه خو د زړه درد غواړم په هر یوه مذهب کې
تا زده ستا خبرې چې نقلونه رنګارنګ کړې

❀❀❀❀❀❀

چا درېسې ډېرې توښې واخیستې طلب کا
ځینو مصلې د بې ننګۍ درپسې لنګ کړې

❀❀❀❀❀❀

مرګ لره یې واړه د ډهلي لښکرې راغلې
ته لا د خوشحال په مرګ ځان روغ نه ګڼې ننګ کړې

ګل اغا سادات کوټوال

# ارمان

څو پوري لوبیږئ د مېږو په شان په خاورو کې
والوزئ شاهین شئ دافغان په لوړو غرو باندې

❀❀❀❀❀❀❀❀❀

پرېږدئ دګونګوټ چمونه پرېږدئ هیواد والو نور
پورته شئ عنقاشئ دفضا په منزلو باندې

❀❀❀❀❀❀❀❀❀

ورکړئ د همت لاسونه متې مو رابډ وهئ
څوپورې به بار وي افغانان دبل اوږو باندې

❀❀❀❀❀❀❀❀❀

پاڅېږئ بیدارشئ د غفلت خوبونونه پرېږدئ نور
وګورئ اسمان ته لمر خپور شوې وطنو باندې

❀❀❀❀❀❀❀❀❀

ټول وطن رڼا شو، د سهار لمر راختلی دی
وخت د کار راغلی نن په ځوان او په زړو باندې

❀❀❀❀❀❀❀❀❀

ورکړئ د وحدت لاسونه، یو کړئ سره زړونه
هسک موکړئ بیرغ په لوړو منارو باندې

❀❀❀❀❀❀❀❀❀

څوبه داټوپک قوماندانې وي دوسلو په دود؟
وران هیواد اباد کړئ نن په سولې او جرګو باندې

❀❀❀❀❀❀❀❀❀

راشئ چې خپل فکر قلم یو کړو تر ابده نور
خپل وطن ودان کړو نور د پوهې په فکرو باندې

❀❀❀❀❀❀❀❀❀

ورکړئ سره غاړې مرورو افغانانو نور
لږ رحم خو وکړئ دغه ورانو کنډوالو باندې

❀❀❀❀❀❀❀❀❀

ټولې کارنامې مو د تاریخ کندې ته وسپارئ
ګریوان مو خپل قاضي کړئ فیصله وکړئ جرګو باندې

فضل الدین (سراجي)

# ورانګې

څو ورانګې وینم وړاندې له رنګونو پورته کیږي
دښتې بخملي سیمې له فصلونو پورته کیږي

فطرت خپله ځولۍ له ښکلا ډکه ورته ساتي
خواره واره بویونه له ګلونو پورته کیږي

چاوې چې وریځې راغلي چاوې نه خدایږو لوګي دي
آخ ! داخو دکونړ د شنو ځنګلو نو پورته کیږي

هجوم دسرولمبو دشنو نښترو وینه زبېښي
یو شور دسرو سکروټو او او رونو پورته کیږي

مرغانو له پنډخو بچو ډکې ځالې پرېښوې
په چیغ چیغ په فریاد او په ویرونو پورته کیږي

څو سترې سانیولې مرغۍ راغلې پناه غواړي
شپېه پس یې اروا له اسمانونو پورته کیږي

چې قوم وي نو قوت وي د ظالم لاسونه لنډ وي
ای خدایه دلته ظلم له قوتونو پورته کیږي

داسین خو سراجي د اوښکو هغه قافله ده
له سترګو یې بهیږي ترې موجونه پورته کیږي

# بدرنګ غمونه

زړه سواند شینواری

نه بدرنګ غمونه لاړل نه اختر بېرته راستون شو
نه سپوږمۍ د څوارلسمې نه سحر بېرته راستون شو

داسمان لمنې سرې شوې بیا به توره ګونګۍ شپه شي
لمر دغرو شاته ډوبېږي مازیګر بېرته راستون شو

لاپه وینو باندې سور دی د احساس ارمان مې څکه
ستړی، ستړی بوږ نېدلی له ګودر بېرته راستون شو

د وطن دپاسه ګرځي ډارونکې د غم ورځې
نه سندرې راستنې شوې نه دلبر بېرته راستون شو

چې مانښام په وېره ، وېره تېرېدم شاړې کوڅې کې
ننداره ته دزړګي مې ستا نظر بېرته راستون شو

په خوږو ، خوږو نغمو به رانه هېرې کاندې ساندې
مینه ناك جانان زما که له بهر بېرته راستون شو

ماته ښکاري چې زړه سواند دې بادوي اوس په سر خاورې
مرور و چېرته تللی مرور بېرته رستون شو

# اداګانې

شکیلا (اوښکه)

جانانه په زړګي دي اداګانو وخوړم
داستا د دوو سترګو بلاګانو وخوړم

په تمه ددیدن دانتظار په اور وریته شوم
په دې ګرمو کوڅوکې رقیبانو وخوړم

خبر مې یاره واخله بې خبره رانه نه شې
د تورو غرو لمنوکې کارغانو وخوړم

په دښتو په میروکې وریسې کوې مزلونه
لمن راته فریاد کړې چې څوزانو وخوړم

وهي (شکیلا) زړه دې په هر څه پسې ټوپونه
د شین چمن په منځ کې سرو ګلانو وخوړ

# مجله چاپوم

حفیظ الله "تراب"

ربنتیا چې د پښتو ژبې د لیکوالو او شاعرانو غورنیکه خوشال بابا ښه ویلي:

"چې غوټې پسې وهې په لاس به درشي".

په پای کې ایله ځو ورځې مخکې د مجلې د مسوول مدیریت پر "ګوهري سیټ" کېناستم. د دې لپاره چې د مجلې وزن درونده شي. را ته پکار وه چې په ځینو چارو باید لـه واره لاس پورې کړم. تر ښه سوچ وروسته مې هغه دکاندار خپل مرستیال وټاکه چې له پنځه څلوېښت میاشتو راهیسې یې پوروړی یم. د دې لپاره چې مجله لاپسې درنه ښکاره شي، نو یو کتنپلاوی مې خنجر ګل چې د تورخم په دروازه کې تر ټولو کلك سترګی ساتونکی دی او زه یې د منتونو سره سره په پنځه سوه روپو را اړولی وم، وټاکه او بل مې هم یو کتاب پلورونکی چې کله نه کله زما کتابونه په خپله هټۍ کې کېږدي، غوره کړ.

پښتنو نه په زارسېدو تر لږې دمې وروسته مې لـه خانه سره پرېکړه وکړه، چې لـه همدا اوسه د ملګرو شاعرانو او لیکوالو سره باید ووینم. سرك ته لاپوره نه وم رسېدلی، چې ښاغلی مصروف ضیب دخپلو دووتنو ملګرو سره مخې ته راغی. زړه کې مې وویل: "ربنتیا چې لـه زړه نه زړه تـه لار وي" زموږ تر منځ د لیکوالۍ او د مکر نه ډکه سترې مشي پیل شوه. له واره مې ورتـه وویل: همدا اوس مې په زړه کې ګرځېدې!

هغه بله خبره په بې صبرۍ خوله کې راوچه کړه:

ـ ما په اسمان غوښتې، خدای په ځمکه راکړې. په را روانو دوو ورځو کې بـه را تـه یو ښه طنز لیکې!

ـ په طنز څه کی (کوې)؟

ـ مسلمانه! خبر نه یې مجله چاپوم! بیا یې خپلو دواړو ملګرو ته لاس ونیو.

ـ دوی خو پېژنې!

ـ ولې نه، ښه یې پېژنم.

ـ دا دواړه مې کتنپلاوي دي. په دې وخت کې د هغه رنګ والوت. خو ما ورته وویل:

ـ ما هم ستا د کتنپلاو غوندې کتنپلاوي ټاکلي دي. که و دې لیدل نو په خان به شکر وباسې!

کور یې اباد، بده یې ونه ګڼله او موسکی شو

زه هم ګرم نه وم، ځکه چې د مصروف صیب یو کټنپلاوی قصاب او بل یې نانوایي و.
له دې ځایه د کمپیوټرنو او لیکوالو ځالې "ګل حاجي پلازا" ته لاړم. څېړنیز، ادبي او دیني مضامین مې له ملګرو لیکوالو چې هره ورځ همدلته د زینو په طواف بوخت وي، باید تر لاسه کړي وای. د دریېم پوړ په پوړیو کې لا روان وم، چې ښاغلي څېړنمل صیب ته مخامخ شوم. په دومره مینه یې په غېږ کې ونیولم لکه پر چا چې د ازادۍ د راډیو د مقررۍ زیری وشي. په تلوسه یې وویل:
ـ طنز خو همدا اوس راوباسه او بل به دې په بل نامه خپروم!
ـ چېرته یې خپروې؟
ـ ولې خبر نه یې، چې مجله چاپوم؟!
حیران شوم، چې څه ورته ووایم. هغه په ټینګار وویل:
ـ نور هر څه تیار دي، یوه لنډه کیسه او طنز درنه غواړم!
ـ ښه زما لپاره به مضمون څنګه شي؟
ـ بلې ګڼې ته به ګورو!
له دې ځایه بریښنادوست ته ورغلم، چې د کمپوز خبره ور سره له مخکې وکړم.
د هغه له کبره، چې څومره وېرېدم، برخلاف په پوره مینه یې را سره روغبړ وکړ او له واره یې وویل:
ـ خبر یې چې مجله چاپوم؟
ـ ډېر ښه، دا خو ښه زیری دی، خو زه د مجلې د کمپوز لپاره راغلی یم.
ـ سهي ده، خو یو طنز به راوړې!
له دې وروسته په ټول پېښور کې په یوه پښه وګرځېدم، خو چا د خدای د رضا لپاره هم یو مضمون را نه کړ.
د مجلې د چاپ ورځې ورو ورو رانږدې کېدې. پوی شوم چې په خپلو غورو کې پاتې کېږم. د کتابونو په ملګري پسې لاړم. ما هوډ کړی و چې مجله چاپوم.
له هغه منې امانت کتابونه راواخیستل. زر زر مې ترې مطالب را وکښل. بریښنادوست ته مې په یوه منډه راوړل او د خپل لنډ تنګ وخت مجبوریت مې هم ورته ووایه.
له وعدې سره سم په سبا مازیګر ورغلم، چې ومې کتل. مرورصیب او څېړنمل صیب هم ناست وو. د خپلو مطالبو بیا بیا پوښتنې نور په زړه سترې کړم. نورې مې د خپلو پروفو پسې سترګې ووتې! اخر مې ورته وویل:
ـ وروره! خبر یې زه مجله چاپوم؟
هغه په تروه تنده وویل:
ـ ولې ته نه پوهېږې، چې زه یې هم چاپوم؟!
مرور او څېړنمل صاحبان هم په خپلو چوکیو کې لکه ماران تا راتاو شول او په غبرګو غږونو یې وویل:
ـ ته خبر یې چې موږ مجله چاپوو؟ یوه میاشت وشوه چې د پروفو پسې نور زکام شو. نور نو صبر نه شو کولای.

هغوی هم ګرم نه وو: یوه له سوداګره روپۍ اخیستې وې او بل د معیاري ادب او هنر د لاپې په نامه کوم ښاغلي غولولی و.

ټولو په شریکه او جدي لهجه ښاغلي برېښنادوست ته وویل:

ـ یوه اونۍ وروسته یې درنه غواړو، بیا به ګیله نه کوې؟

له دې ځایه په غوسه راووتو. یوه اونۍ وروسته له نورو زه وختي ورغلم. برېښنا دوست تر نازونو وروسته په هندي ادا پر خپلې چوکۍ کېناست. په پرېنټولو یې چې پیل وکړ، نو نږدې مې له خوښۍ ښکل کړی و. پرېنټ لاسر ته نه و. رسېدلی. چې مرور او خېرنمل هم ساوتیګا رانښوتل. پرېنټ چې پای ته ورسېد، نو له واره خېرنمل لاس ورتېر کړ. فکر مې وکړ چې ګنې ګوري یې. همدې کې و. چې په مودبانه ډول مې ورته وویل:

ـ اوس یې راکړه، چې مجله چاپ شوه. بیا به یې وګورئ. هغه ته زما خبره ټوکه ښکاره شوه، په وتو کې و. چې مرور صیب له لاسه ونیو او ورته یې وویل:

ـ څه کوې، پردي پروف وړې؟

هغه ورته سترګې را برګې کړې:

ـ پردي څنګه دي؟

ـ ولې ته سترګې نه لرې، دا د چا دي؟

ما ورته وویل:

ـ وروره! تاسې دواړه لکه چې په ما ریشخند وهئ او له دې سره مې پروف ترې راښکل. د راښکلو سره خبره ګوزارونو ته ورسېده.د برېښنادوست صیب له دوکانه د سترګو په رپ کې د تورخم دروازه جوړه شوه. په لږه شېبه کې ډېر پاخه پاخه ګوازارونه سره تبادله شول. سپېړې ماتې شوې، ګرېوانونه وشکېدل او د پروفو پاڼې د نندارچیانو په پښو کې دهلېزونو ته ورسېدې.

په پای کې خلکو ډنډولۍ کړو، مازیګر موده وه چې د هېواد نومیالی ادیب (خندل یار) صیب زموږ ستونزه حل کړه او له خندا سره یو ځای یې د هر یوه مخې ته خپل خپل پروف کېښودل. ربښتیا هم چې زموږ د درې واړو پروف لږ څه کم یو ډول وو او هغه داسې:

عین سرمقاله، دیني مضمون، زړه لنډه کیسه، د نازیه اقبال سره مرکه، فلمي دنیا، پخلی، د ژور لیدونو د کتاب خبرې، د سرو زرو صندوق څخه معلومات، د ملا نصرالدین ټوکې، د غور ولایت او داسې نور.

خو د دې پر ځای چې ګرېوانونو ته سرونه ښکته کړو، د نویو عزایمو سره هره یوه بیا په زړه کې کلکه ژمنه وکړه، چې: "مجله چاپوم".

# Gazette

All were unhappy, his wife was mourning of her poor fortune and would console and ascertain herself, but when she was not convinced, then quickly span the thread and, in the name of Loey Zawan (A. Jailani) put it on her demand and uncle Jani, with a gun in his hand came home. His children welcomed and greeted him and aunt Badrai was standing still and amazing looking at him. When his children saw him with empty hands, one of then told him with a childish style of asking- father, you did not bring me a partridge? He did not say something else. When his mother angrily said" be happy as he came alive" at their time uncle Jani leant to the wall and showed unpleasant when aunt Badri felt his sorrow, told him compassionately: that "God protected us, otherwise what would have happened today" He didn't answer his wife. The children were also astonished. They have not seen him in this manner before. As his stillness continued, then his wife quietly asked why are you unhappy? What is the matter?

Yes, everything is all right, but today I saw that would never forget in my life. By saying these all looked at him and aunt, Badri asked amazingly what is it? I saw the bombing of Russian fighter, but as I saw the bombing of American fighters, I thought that Speen Ghar (with mountain) would become upside down. I do not know how I found a shelter and hid there. A heavy bombing was going on the crests of Speen Ghar and upon all its surroundings, but after two- three hours the fighters began bombing other side of the mountain. I saw down as the smoke and dust covered the entire area. I wanted to come down when smoke and dust lessened later I saw through such dust a gazette appeared which after few steps would lie down, and would look at the sky and when there was no fighter, would stand up, but after few steps would lie again. She repeated this way many times. I was wondering that God gave her such knowledge.

Once I pointed my gun toward her and wanted to shoot, but as I saw today's resurrection and saw her fear, I felt that how she was afraid of the situation. I was astonished that she was coming to my direction where as had seen me, She was slowly approaching me, but disappeared while was 30-40 meters away from me, I also come down, looked around, but couldn't found her. As I was, coming down the mountain suddenly heard the falling of a stone. I stopped again and when looked around, saw a narrow cave and the gazette was slowly crawling to the cave. I hid behind of rock. Gazette tried many times, but after few steps, would fall to the ground. She tried several times, but soft sand was accumulated in front of the cave. She had approached from a steep direction and got tired of falling many times. She was very thirsty and breathed irregularly. But any way did not give up. I could not tolerate more and decided to get closer to her behind a rock and pull her leg when she stretch it. Stood up and slowly moved toward her. The distance between her and me was only 15 minutes, but after such time – when I reached there from the back, I saw something, which I could not forget it for longer Gazette reached the cave and her small baby was jumping around it. The baby kissed its mother several times and then came closer to breasts of its mother. The small baby could not take the breast, because the breasts were under him mother's babies. Gazette had already died from her wound, but the breast seemed full of milk.



As you know, the poor country Afghanistan has recently signed the Ottawa Treaty on banning anti- personnel mines. How can other powerful countries, who has not joined that convention yet, to be urged to do so also?

First of all, only minorities haven't joined to Ottawa convention. The vast majority of the international communities are promoting the ban on anti-personnel mines. Unfortunately, for example USA, Russia, India, and Pakistan are still reluctant to join. However, also that country has recognized the humanitarian problem caused by landmines and they contribute to the humanitarian aid to struggle the deadly legacy of landmines. We should continue to encourage them to take the next step and to Ban these cruel weapons. By the way, in view of the German initiative to Ban Landmines we should also continue to encourage the international community to Ban all landmines, including anti-tank or anti Vehicle mines.

Will be there any possibility for your organization to financially support AABRAR or at least recommended it to other potential donors?

The German initiative to Ban landmines is supposed to support the political and public relation work in Germany. We actually funded by our member organizations. So, my organization does not provide funds to projects in the field. However, we have very good access to our member organizations who from case to case may be willing to finance the work of AABRAR. For the time being, you have already best contact to one of our active member organization, which is medico International.

What is your opinion about AABRAR's activities?

I am impressed by the wide range of activities provided by AABRAR especially I like the creative ideas of income generation innovations like the Bicycle driven mixer and grindstone. In addition, the medical treatment and the physiotherapy, and the literacy lessons were of high interest for me. I wish you all the best and hope that you are able to continue and to improve your valuable contribution to the development of your country.

I understand that Kuran says the disabled should be respected, should not be called by defamatory words. On the other hand, I hear that persons with disability often are being actively discriminated against. A girl who lost part her lower limb is not being allowed to marry the man who wishes to get married to her. Hopefully there is room for a campaign on the grounds of human rights and with respect to the Kuran, which will help the disabled community in Afghanistan to be fully respected. Your magazine can be one way how to disseminate this message.

Would you like to introduce yourself to the readers?

My name is Markus Haake. I am the coordinator of German initiative to Ban landmines, which is an Umbrella organization of seventeen German aid development organizations, who associated for the purpose of campaign for comprehensive Ban on all landmines.

What is your main aim of your coming to Afghanistan?

I wanted to become known to the country and to the people who have suffered and still suffer from the scourge of landmines and war. Additionally, I wanted to become known to their hopes and fears and to the obstacle and the chances of their country.

What do you think, how much time it will take to complete mine clearance in Afghanistan?

That is very difficult question, since no one knows the exact figure of mines laid in the ground of Afghanistan. However, presuming that the international community will continue their support to Afghanistan for the upcoming years, experts assume that it will take seven years to make Afghanistan at least mine-impact free. That means that hopefully in seven years no more harm and no more economical hazard will be caused by the presence of landmines.

We are also glad to see that you offer income- generation activities for women, for boys and girls. In this field I think AABRAR should try to still find more ideas. possibly learning form other organizations in the field.

As you know well TV, has a vital role in play in community awareness. We already made a video drama for disabled. Would you like to support us in t his field in the future?

Actually this questions coincides with a proposal I made even today to AABRAR. Why don't you include a budget line in the future on public Relations/Awareness Raising which will allow to cover costs for the magazine as well as for films, brochures etc.

Would you like to fund AABRAR for next year?

Yes, but as I pointed our before this also depend on the willingness of our two big donors, Caritas Germany and Diakonie. I will propose to them to please keep funding up to for 2003 as well.

What is your idea about the quality of Daly magazine?

I am very positively impressed, however unfortunately I do not read Pashto or Dari. Therefore, I cannot really comment on the content. The layout could improve the quality of pictures, maybe some drawings, cartoons. You know what is suitable for your audience.

You visited in your current trip Kabul, Herat and Jalalabad what are your impressions from this trip?

First, it was only my second visit to Afghanistan. So, I was very glad to get to the famous ancient town of Herat for the first time. Going to Torghondi at the border to Turkmenistan allowed me to see more than just some of the cities of Afghanistan.

What do your think about the present political situation in Afghanistan?

Of course, I am worried whether this fragile peace will last, but I had the impression that people are a little more confident than in February this year. You know, we attended the international Conference on Mine Action in Kabul, when the Transitional Government signed the Ottawa Treaty to ban anti- personnel Landmines and to support the victims of this coward " soldier who never sleeps". So I asked in Herat whether they think that also Ismael Khan and the regional governmental will implement the ban, destroy all stockpiles and allow clearing all sites. I was gladly surprised to hear a positive answer.

At the end, if you have any message to the Afghan disabled and people would be very pleased.

## Interviews with Mr. Sebastian Kasack and Mr. Markus Haake

Would you like to introduce yourself to the readers of Dalay?

May name is Sebastian Kasack. I work for a German non-governmental organization for humanitarian Aid and Human Rights, called Medico International.

Could you please tell us about your assistance to the Afghan people?

Medico International is a founding member of the International Campaign to Ban landmines. Afghans have taken a very active stance in the Campaign. Due to our close relationship, it was easy for us to have contacts to Afghan NGOs in the aftermath of the events of September 11. Medico decided to support Mine Action in Afghanistan, not by opening our own office, but to support the good work of Afghan NGOs. From our own limited funding resources and the generous support of Caritas Germany and Diakonie Emergency Aid, Germany, we succeeded in raising 250.000 USD for 2002. Medico needs part of these money for monitoring and administrative costs as well.

What is your opinion about AABRAR's activities?



*From left to right Mr. Sebastian, Hafeezullah 'Turab' and Mr. Markus Haake*

I am very impressed with the comprehensive approach. AABRAR is taking towards persons with a deficiency. To combine Bicycle training (cycling and repair work) with literacy and numeracy, to teach on Mine Awareness and First Aid as well. To offer physiotherapy and General Health Care, not to forget sports activities is a very remarkable approach. A person who is capable to earn a living, to support his/her family has a much better chance to live a dignified life than those being totally depended. Medico is proud to have found such a creative partner.

I am certain that Afghan Government and the world community both intend to support services for the disabled people in Afghanistan. The Ministry of Martyrs and Disabled has strong desire to coordinate the efforts of the Ministry with the international community to help the disabled people. If we can coordinate our efforts, we will be able to remove duplications and will serve the disabled people more efficiently.

For the purpose of National Disability Commission was established to become a coordinating body for those who are working for the disabled people. It will prepare a national database; develop policies, standard, and legislations for the abled people in Afghanistan. The NDC will also arrange an exchange program with different countries to enable the ministry to learn from the experience of those countries.

The Ministry has offices in each province of Afghanistan and it has access to the disabled people in entire Afghanistan. The Ministry has registered some of the disabled people in

Kabul and other provinces and is in process to register all disables in Kabul and extend the registration to all provinces of Afghanistan. Registration of all disabled people in all provinces of Afghanistan is a difficult issue but it is not impossible. With the cooperation of the United Nation and international community, we will be able to complete this task. Once the registration of disabled people in Afghanistan is complete, we will be in a better position to provide services for the disabled community.

The Ministry is working hard to provide education, training job opportunities for the disabled people so that they become useful elements of the society and be able to participate in social and economical activities of the society.

The Ministry is trying to encourage NGOs and donor country representatives to support projects, which can benefits the disabled people in Kabul and other provinces of Afghanistan. I request donor countries representatives to provide us with technical assistance and experts in the field of disabilities.

We are drafting details of these, but since we are starting from the beginning there are, many things we know are necessary immediately. This Ministry, in coordination with its UN partner, will call for the establishment of a Donor support for Disability to coordinate this effort.

The Ministry will cooperate with all parties who are working for the welfare of disabled people. This cooperation and coordination can help the Ministry, NGOs, and donor countries to successfully implement the projects and assist the disabled people in Afghanistan.

# Transitional Government of Afghanistan

## MINISTRY OF MARTYRS AND DISABLED

On behalf of the Ministry of Martyrs and Disabled, which is responsible for the welfare of the disabled community in Afghanistan, I would like to thank UN and the ICBL for helping to organize this conference. I would like to welcome Jody Williams, the international experts from the mine action community, the UN representatives, donor country representative and mine action NGOs working in Afghanistan. I am glad that today we are working on prohibition of the use, stockpiling, production and transfer of anti- personnel mines and on their destruction. The more than two decades long war in Afghanistan not only destroyed the countrybut also killed, injured, and disabled its population. The Afghan Government and the international community have the responsibility to stop war, bring peace and security to the country, and finally ban landmines in Afghanistan so that the mines do not touch people in the future.

The Afghan Government and the international community have also the responsibility to look after the disabled people in Afghanistan. They should discuss the procedure of the work and the service that they can offer to the disabled people in Afghanistan. Afghanistan has the highest percentage of disable people in the world. Landmines and the tools of war have not only directly killed and handicapped our people but the indirect effects or this war, which cut government services especially in Health, limited our food production and increased the general poverty level have also added to the number of disabled. Unfortunately, there are very little opportunities and services for these people in Afghanistan.

After the terrorist attack on the 11 September, the world community turned their attention to Afghanistan in order to make Afghanistan free from terrorists and to make it a safe place to live. The Transitional Government is trying to build a stronger administration to cut the roots of terrorists and to assure the future generation will not suffer from disability due to internal conflicts and war.



# In the name of God






It is "said that before appearance of truth falls would destroy towns". This statement since some years was true about posture of our people. As ten years internal wars eradicated our country's assets, together with that degraded and defamed our culture before foreigners. When they saw our disputes, decided that Afghans do not know anything except war, fratricide and destruction; as enmity mixed with the blood. But unaware of the Afghans are most peace lovers and firmly respect mutually. For years, they lived in fraternity, tranquility, that the main examples were the ear of former king Mohammed Zahir Shah and Mohammed Dawood. that no one has witnessed any signs of better co-existence anywhere else.

The truth is that previous internal wars were imposed other an them. Every one knew the causes of those disputes, but the word which has been acceptable to all, is that some warring Afghans were economically forced to become victims of some things and used as their favorable tools for their nasty interests. Such causes resulted in the event of 11 September that entirely changed political shape as well as the fate of Afghanistan; and world communities strictly pledged to contribute in reconstruction and rehabilitation of Afghanistan. By hearing such pledges, the hopes of having prosperous country, were heard form all corners of the country, and they are still desirous to fill this gap. If the aids and assistance really concede and be properly utilized, then we will definitely achieve peace and prosperity. But the thing that is most important to governmental and non-governmental authorities is that the said aids and assistance be used with full honesty in locations needing cooperation and in proper areas. Because in each portion/part of these assistance lies the blood of our innocent martyrs' windows orphans as well as of the whole nation.

Hafizullah Turab




**PUBLISHED BY:**

Afghan Amputee Bicyclists for Rehabilitation and Recreation (AABRAR).

**Founder :** DR. Abdul Baseer Turialay.

**Editor-in-Chief:** Hafizullah Turab.

**Ass:** Abdul Nasir Barialay.

**Editorial Board:** Omarakhan Muneeb and sayed Elyas Sadaqat.

**Sponsored by:**

***Medico International.E.V. Deakonie and Caritas Germany.***

*Address:*

AABRAR C/O KJRC Jamrud Road
U/T Peshawar, Pakistan.
**Phone:** 091-092-844078
**Fax:** 091-092-840521
**Email:** aabrarps@psh.paknet.com.pk

**OR**

AABRAR Public Health Hospital No.1
Ningarhar Jalalabad Afghanistan.
AABRAR Taimani Sarsubzi Chowk
second road near sher-e-yazdan Mosque
Kablu Afghanistan.
The Bank of Khyber, Main Branch the
Mall Peshawar Cantt
**A/C No.** U$$ 01818007

## Table of Contents



**Pashto and Dari 45 Pages**

**The articles express the ideas and views of the authors, not necessarily of the AABRAR.**

